# په خاطر

د خوشحال او خوږ اوسي ژوند د هغه سپړلي چه په
غزا او سمه، لوړه او ژوره، تور او سپين، زورور او کمزوري
شتمن او نېستمن، ګل او خار، ښه او بد يو شان راځي
—— هر څوک او هر څيز ترنه د ښائست، ودې
(ارتقا) او خوشحالئ برخه د خپل توني او همت په
مقدار —— د څه مخ مروت، لحاظ، اثر، رعب او
امتياز بغير لکه د مور د پيو اخستے شي.

# په نوم

د نوي کول د هغه باشعوره غیرتمن مړونو چه ځان هم پېژني
او جهان هم ـــــ ذهن ئې په داسې علم منوّر وي چه
د دواړو (ځان او جهان) د صحت او ارتقا حقیقي رازونو
او سببونو ته ښه رسي او د اولس د ښکالۍ د سپرلي په
خصمانه پوهیږي ـــــ او زړه ئې د هغه عشق نه
ډک وي چه د دغه سپرلي د ګلونو په مینه کښې
سرو لمبو ته ورډانګل وصال ګڼي.

# یو څو خبرې

ژوبل احساس یو څو څرېکې ـــ د زخمي غېرت یو څو غورځنګونه ـــ د سرې وینې یو څو ترم څاڅکي ـــ د اوسي جونګړیو څو ټسنه اسوېلي ـــ د غېرت یو څو ترخه تجربې ـــ د مروانې یو څو ناکردې ـــ د غاورو اقتدار یو څو رهنډې ـــ او ورسره د پښتو بې احساس چه ځما شاعر زړه د پښتني فن په سور رباب او ترنګولو نو زه په نه شم چه خوږې سندرې تر جوړې شوې که سړي ساندې وې دومره پوهه شوم چه د نور او اورود سپینو تجربو څرګو منجرانو واوړي بدل نو تندۍ ئې تریو کړل او چه د غریب اوښکو او نا شعوره طبقې ترغږه شول نو په سوي زړه ئې لکه د دسمالې اوګنډل.

دغه اشعار ـــ څه خو ځما بیا بیا خانه تلاشۍ کښې خدائے خبر د چا په لاس ورغلل او څه شول ـــ څه ځما مېڅنې مور د پولیس د بیا بیا حملو د ویرې ځما د دېرو نورو مسودو سره تنور ته ور اوغورځول ـ څه چه څنګه ما چرته اولیکل هغه شان پاتې شول او ځما د پاره ورک شول ـــ

* د غېرت چغه ـ د هغه اشعارو نه یو څو هغه نظمونه دي چه ما د یو او بل طرف نه تر اوسه راجمع کړې شول او هغه اوس ته ئې

پېش کوم د چا د ترخ ژوند احساس چه رابانلے بیکلی دی۔

د احساس د زخمونو نه مِ لا وینے څاڅی، د غربت پرهرونه مِ لا تازه دی، اوسی ژوند راته هغسے تول ازغی ازغی دے او د زړه د رباب تارونه مِ هم شکردے لا ست شوی نه دی، اوس هم چه چرته زه او زړه مِ یوا ځی شو نو دا سے محسوسوم لکه چه د سوی نغو باران کښے ناست یم، نو که ژوند د دو او حالاتو دومره مِ مهلت راکړے وے چه دغه نغے مِ د اشعارو جامه کښے را ایساره شوے نو که خیری د پښتونخوا د غرونو او میدانونو نه به د غربت لو پله څه هم داوریدے شی او که خدائے کوله هغه ورک نظمونه هم چرته په وس را غلی وو نو هغه به هم ورسره ملګری شی، کیدے شی چه بیا "د غربت چغه" نیمګړې نه ښکاری۔

---

د زړه د دنیا خوږے ترخے تجربے، واردات او جذبات یا د احساس جمال رنګ چه د غزلو، نظمونو، سندرو، قطعو او رباعیاتو شکل کښے وخت په وخت ظاهر شوے دے هغه زه نه د خپل ژوند نه بیلولے شم نه د شاعرئ نه، هغه اشعار مِ د "غربت" د دے "چغے" نه ځکه بیل کړل چه هغه کښے کوم تاثر دے هغه منم چه د غربت د چغے د تاثر مخالف نه دے وے بیل ترِ ضرور دے نو ځکه ما په خیال په خپل وخت بیل شائع کول پکار دی۔

---

که د څنه ملګرو ما د نظمونو سره مینه نه وے او څو ځان سره په هر حالت کښے محفوظ ساتلے نه وے نو دا "د غربت چغه" به نن د ډیرو نظمونو نه محرومه وه ځکه ــــ زه دا مجموعه [illegible] وړاندے کولو وخت کښ د څنے ملګرو د زړه د اخلاص شکریه ادا کول ضروری ګڼم۔

اجمل خټک ۔ اکوړه، ۶ اپریل سنه ۱۹۵۸ء.

# د غیرت چغه

د خوشحال له خاورې پورته یو نغمه شوم
بل مشال په اباسین او تاتره شوم
سړے! پوهه شوے؟ د غیرت چغه سور اور ووم
چه تا څومره رانغږدلم سره لمبه شوم

که ظالم مِ ژبه غوڅه کړه تېره شوه

تورې خومره چه تېرې شوې لا خوږه شوه

اوس که نړوي نو غوږونه دِ خپل پرې کړي

چه ځما نغمه سړه نه شوله سره شوه.

# ملکرو

ملګرو! تش په لوګیدو ار نه شو

ځئ چه لمبه شُو دا خپل ځان او سوزو

د نوی ګُل د خصمانے د پاره

دا زوړ خوړے ګُلستان او سوزو

غمان، غمان، نېکان، نېکان پیدا دي

دوی خو له ځایه جنتیان پیدا دي

ځينې هغې خوارو له جنت اوکتو

څوک چې د سوره دوزخیان پیدا دي

# فهرست

# لویه خدایه

لویه خدایه! لویه خدایه!
دا تیرے په مونږ رڼا کړے
ستا له مینے مو ډکا کړے
رورولئ را کښے پیدا کړے
په سینو کښے چه مونږ هر — د کینو او تربګنو دی
په ذهنونو کښے مو جالے — د وهمونو د تیرو دی
ورته علم پوهه را کړے
دا زنګونه تول صفا کړے
لویه خدایه! لویه خدایه!
دا تیرے په مونږ رڼا کړے
داچه تا یو پیدا کړي — د غیرت نه ډک مرونه
دا خورے ورے تبرے — دا تس نس پراته خیلونه

دیو لاس دا خورے کوتے ،
رالوځائے په مینه بیا کړے
لویه خدایه! لویه خدا یه!
دا تیرے په مونږ رڼرا کړے
داچه ستاد بنائست کور دے　　داچه ستاد نور زانګو ده
داچه جاله د غیرت ده　　داچه خونه د پښتو ده
دا چه ستا کورکښے ښا دے
دا ځما وطن ښا کړے
لویه خدایه! لویه خدایه!
دا تیرے په مونږ رڼرا کړے
ژوند مو مینه محبت شی　　مرګ د توری د عزت شی
دیوه بله د محنت شی　　داخپل کور راته جنت شی
چه په قول اوس، رڼرا شی
خدایه چغه سپین صبا کړے

لویه خدایه! لویه خدایه!
دا تیرے په مونږ رنړا کړے
په جنت غوندے وطن کښے اوږی تږی انسانان دی
په میوو او په ولوے ناست د زهرو دک ماران دی
یو کړو دا لوړه ژوره
مونږ ته دا سے همت را کړے
لویه خدایه! لویه خدایه!
دا تیرے په مونږ رنړا کړے
د خپل پلار نیکه د ټورے لوئے وطن مو ګلستان کړو
که په وینه اباد یږی چه دا کور ځانته ودان کړو
د دے لوئے مقصد د پاره
مونږ یو چغه یو صلا کړے
لویه خدایه! لویه خدایه!
دا تیرے په مونږ رنړا کړے

# د غیرت چغه

ــــــ

که په میوند کښې شهید نه شوے

خپله لالیه! بے ننګۍ له دِ ساتینه

دا د پښتو یو مشهوره ټپه (مصرعه) ده — دا نظم په ما دے ټپې لیکلے دے.

منم چه دا د تورواکانو دُنیا

د خپلواکۍ سُونګوسے بدے ګڼړي

منم چه دا د خو غښتانو دے

د ازادۍ دوے ببدے ګڼړي

ولے په دے غیرت غیرت خاوره کښے

په دے هم جُراَت جُراَت خاوره کښے

چرته تاوده وینه به نه ئې چه واوری؛

چرته کښے سره ډیڼه به نه ئې چه واوری؛

زه د وطن د شهیدانو وینه یم ارمانی غونډے فریاد کومه

منم د چل په ټوکو ښه وینه
یو څو زوړے خرُبوڼے شی بس
په ښکارانو دوکه شوے جُړه
بل ته بنکارونه رانیوے شی بس

وے دے د شنو زمرو جاله کښې
دے دے د توریالو خاله کښې

چرته تاوده وینه به نه ئ چه واوری؛
چرته کښے نر وینه، به نه ئ چه واوری؛

زه د وطن د شهیدانو وینه یو ارمانی غونده فریاد کومه

په نویو نویو انغرو مې قسم
درنے درنے تبرنے اوترسکیدے

په پلنو پلنو هډیو مې سوګند
خورے ورے پرګنے اورنځیدے

دے لوړ سرونو زرغونو رغو کښے
دے اوچو ترږو او پخو درو کښے

چرته تاوده وینه به نه ئ چه واوړی؟
چرته کښے سره وینه به نه ئ چه واوری؟

زه د وطن د شهیدانو وینه یو ارمانی غونډے فریاد کومه

د پنجه ور شهباز په جاله باندې

نور د تنزرو غوبل نه شم لیدے

د بت شکن غیرت په خاورو باندې

نور د بتګرو غوبل نه شم لیدے

د غزنوی د توریالو نه پاتې

د ابدالی د ننګیالو نه پاتې

چرته تاوده وینه به نه ئ چه واوری؟

چرته کښې سړه وینه به نه ئ چه واوری؟

زه د وطن د شهیدانو وینه یو ارمانی غوندې فریاد کومه

چه د څړو ځړو ځنو شراب شي
د داسې وینې په سرخئ م قسم
چه د عشاقو د سیخو کباب شي
د داسې ځلا په بے وسئ م قسم
د پخوانو خلو په شنو خزو کښې
د اوسنو زړونو مړو چپو کښې
چرته تاوده وینه به نه ئ چه وا اوری؟
چرته کښې سړه وینه به نه ئ چه وا اوری؟
زه د وطن د شهیدانو وینه یو ارمانی غوندې فریاد کومه

دا چې خونړ د پلار نیکه په څلو

نن د نکوی د خپل څو ښ اشو نه

کې

دا د ذاتي اقتدار او بزي ستر

چې نکوی مو په هر هر چکونه

بس د دوی ستر کې غړول غواړي

د کبر جام نسکورول غواړي

(۶) چرته تاوده وینه به نه ئ چه واوري؟

چرته کښې نږه وینه به نه ئ چه واوري؟

نن د وطن د شهیدانو وینه یو ارماني غږ دے فریاد کومه

د خوارو زړونو د خولو خلا ته

د اسمان ستوري زیړول غوارم

د نوخ نغرو د محنت څاڅکو ته

د ګلاب پرخه شرمول غوارم

په خپله خاوره خپل جنت جوړوم

په خپل اوس خپل حکومت جوړوم

(خو) چرته تاوده وینه به نه یٔ چه واوري؟

چرته کښې سره وینه به نه یٔ چه واوري؟

زه د وطن د شهیدانو وینو پوارماني غوندې فریاد کومه

ډېر د رومان د دنیا په رنګینو دوکه شوم

هم په خوږو دوکه شوم هم په ترخو دوکه شوم

ډېر د حسین خوبونو په تلوسو دوکه شوم

هم په ترخو دوکه شوم هم په خوږو دوکه شوم

نور په رنګینو نشو اوډه کیږي نشه

بس د ریا نغمو ته نور کیږي نشه

ساقي! خما په خوا کښېنه

مه کړنګوه جامونه

لرې کړه دا چنګ ورباب

مه سوزوه تارونه

زهٔ د غېرت د وینے یوه توده څړیکه یم

نه یم په چونګ او بو کښے زهٔ سرېدو ته پېدا

زهٔ د ننګیال ننګونو یو غېرتی کړیکه یم

نه یم په لام و باس غلی کښېدو ته پېدا

زهٔ خورېدو ته پېدا نو پېتېدے نشمه ،

د ستا په زیر او په بم کښے ورکېدے نشمه

ساقی! څما په خوا کښے

مه کړنګوه جب مونه

لرکړه دا چنګ و رباب

مه سوروه تارونه

زۀ د ازغو په منځ کښې　　د ژوندون غنچه غوټۍ

ما د نسیم په څوټو:　　اوده کېدل نه دي زده

زۀ څېړېدو ته پېدا　　زۀ غوړېدو ته پېدا

ما ته ژړل نه راځي　　خما خندل نه دي زده

زۀ په خوږو او ترخو دوکه کېدے نشمه

زۀ رژېدے شمه خو بدلېدے نشمه

ساقي! خما په خوا کښېنه

مه کړنګوه جامونه

لرکړه دا چنګ و رباب

مه سوروه تارونه

په لړزېدلی دُنیا نن غلبلے جوړے دی

ماته د مرګ کُوی کښېنے دلاسے مه راکوه

نور د مم په وېنا کوے زۀ نه تېراوځم

ماته د زهرو ډکے پتاسے مه راکوه

زۀ لړزېدلی نغمه قلاوېدے نشمه

که ته پردې پردے نے زۀ پټېدے نشمه

ساقی! ځما په خوا کښېنے

مه کړېنګوه جامونه

لرکړه دا چنګ و رباب

مه سورود تارونه

ما تهٔ د دنګو غرونو لوړتیا ښهٔ بل ښهٔ وائي

تهٔ مِ د ناز د قدم په خالي شړنګ تېرباسې

ما ته شهیده بابا جي شفق کښې بل ښه ښائي

تهٔ مِ د بل د حِنا په کچه رنګ تېرباسې

ستا په دے ړسو پوسرزهٔ تېروتے نشمه

سترګے مِ هم اوتړه خو رندېدے نشمه

ساقي! ځما په خوا کښې

مه کړنګوه جامونه

ډرکړه دا چنګ و رباب

مه سوروه تارونه

څما سر تورے پیغلے! د غوا غوجل نه ستړی

تۀ م د بل د ډے مستے کډا ته پسیخے

زۀ د ابۍ د لاسو پولو ته نه شم کتے

تۀ م پیالے په لاسو د چا ادا ته پسیخے

زۀ د تنکۍ په خلا سرابیږے نشم

تش د روتو په تپ زۀ مړیږے نشم

ساقي! څما په خوا کښے

مه کړنګوه جامونه

لرکړه دا چنګ و رباب

مه سوروه ترونه

زه د سحر د جرس ، یو سیزدونکی صدا

ته م د غوږے ژبے په الاهو اوده کے

زه د زړه چاودی دُنیا یوه دردمنه کریکه

ته م د زیراو د بم په دے نغو اوده کے

زه لړزوو ته پیدا اوده کیدے نشم

زه د سحر پلوشه په شا کیدے نشم

ساقی! ځما په خوا کښے

مه کړه نکوه جامونه

لرکړه دا چنګ ورباب

مه سوزوه تارونه

ستا د خوږو سترګو په خونکارئ م قسم
زۀ هُم يو ليپه وينه ځن ! توبے م شے

ستا د عشرت د نغمو په مضرابئ م سوګند
زۀ هُم تار تار ړګونه دا يم ! وهلے م شے

ځن ! توبے م شے خو ورکيدے نشم
وهه ، وهلے م شے خو چپ کيدے نشم

ساقی ! خما په خوا کښے
مه کړه نکوه جامونه

لرکړه دا چنګ و رباب
مه سورره تارونه

د وخت په چغه بانګې رابیدار شوے یمه
د ظلم جور او ستم مې اوس تېر یستلے نه شي
د انقلاب لمبې مې دي په رګ رګ کښې بلې
د زردارانو پوکې ئې سر ولې نه شي
یا به پرې خوار غریب ته ژوند د عزت جوړ کړم
ورته د مرې خاورې نه به خپل جنت جوړ کړم
یا د بې وسه ژوند نه د دوزخ اور ښه دے
د غیرت ژوند چه نه وي د کوره ګور ښه دے
د بې قصابانو سره نور چلېد مې نشته
اخر زه هم انسان یم کله کېد مې نشته

ساقی! ځما په خوا کښې

مه کړنګوه جامونه

ترکره دا چنګ و رباب

مه سوروه تارونه

○

## یو شعر

کوزمے به پرېږدی ما پسے به مے خانے ګرځی

که زاهدان شو خبر طور د مېخوارئ نه ځما

تیرۀ مابنام ۱۵ د فبرورۍ وه، په شین آسمان کښې سپوږمۍ خندېدله او زۀ ورته حیران وم، د ځان سره مې سوچ

سپوږمۍ ته کتل، ناڅاپه د چراغ د رڼا نه بلد شوم، د سپوږمۍ په اړه په ما ... څه وخت ورته ... غزل اوليکلو۔

په اوچو خوارو شونډو م فریاد کړې دو

هیڅ پوهه نه وم په زړه کښې د څه یاد کړې دو

ناڅه کوله تمامه شپه د ستورو سندرې

خو ستړو کښې سروستې کې د چا یاد کړې دو

چه درې مې وښتم ستړکې مې راوانړو بیا

دا خکله بونې غونډې صیاد کړې دو

د ستړکو کچکولو نه مې په اوښکو پاکول

د مینې صدقې ته یو برباد کړې دو

او ختې چرې نه وو داسې د بنکلو په ولکه

تراوسه چه اجمل خټک ازاد کړې دو

یاد چه ستا د سترګو په سودا شومه
بس نه یم رسوا که اوس رسوا شومه
پټ پکښې د ستا د دیدن زړې وو
ځکه د یو ګل په تماشا شومه
بس، هره بنادی په ما اوس غم لګی
ستا د درد وغم سره اشنا شومه
تېږ وتم د بنګلو په خندا باندې
بنه شوه چه د خلقو د خندا شومه
بخت که مِ اوده وی تل نو ګرم نه دے
بنکار د خوبونو د حیا شومه

○

خۀ حال وي ځما یاره بې له تا نه مه پُښته
وجود مې سوې کوره نور له ما نه مه پُښته

د ستا د درد و غم نخښې به او پېژنې تۀ
ځما د قبر نخښې د هیچا نه مه پُښته

د تورو خمارو سترګو نه او کړه تجسس
ځما د رنځ په حقله مسیحا نه مه پُښته

بې تا نه څه تېرېږي هر ساعت ځما په ځان
بشرې ته مې او کوره دا ځان نه مه پُښته

د مینې په ګناه کښې ستا خندا لړلې یم
دا جرم دې ځما له دې ژړا نه مه پُښته

شاید دے ترے ترے د اجمل خټک ځیګر
د حُسن نور عبث نورے دُنیا نه مه پُښته

چه زړه په زړه باندې اختیار نه لرم
په مسئلو د مُلا کار نه لرم

د میخانې د رند سلام له ځمه
یقین د چل په استغفار نه لرم

ځان ته به بند د توبې څه ترم
چې بیا د ستا په ښائسته یار نه لرم

ته راکوه زړه به ئې ګوټم په مزه
ستا په رضا کښې څه انکار نه لرم

که هو دِ نه زده خبر دې نه اوو آه
خو نور طاقت د انتظار نه لرم

خبر دِ وی پام ئې بل خوا شوې نه وی
اوس هغه څرېکې د پرهار نه لرم

د ګنهګار خټک به غم څه کړم
چې په سر ستا غوندې غفار نه لرم

## ولولے

زۀ د فضا وسعت تۀ کوم تمام پر ترے

نۀ اسمانونه کخ کوم تۀ م وزر ترے

نۀ په دُنیا د خرښېدو زی خوبونه وینم

تۀ م کوم د ذلالت کښے نعره پړ سر ترے

وړم چه دے ارت بیدت جهان کښے م سیلونه اوکړے

تۀ په تورېږی م د قصاب اوږے نمر ترے

ما کښے وینبیږی د پنجرو د ماتو ووے

تۀ پد اوری تار ځما د پنجرے ور ترے

طبیبه! لرے شه د خپل عقل علاج دِ اوکړه

ځما نۀ خوږ دے تۀ بیتی را په سر ترے

ځما جرأت د شهبازئ نن وزرونه تلی

ښکاری تۀ خوکسے چه اوس هله بال پر ترے

نور ځما په سر دنیا لوبے کوے نه شی

پښتون وینبې شوے زوک دوکه کوے نه شی

اے د ایشیا د عظمتونو زاسنکو!

ستا په نورتیا ستا په عظمت مې سلام

اے د دنیا د نعمتونو کورنه!

ستا په بنګلا، ستا په عزت مې سلام

دی لاتندی کښې مې شکرے پرتے

چرته یو څو شکرے خورمه خسمه

چرته کښې سرتندے وهمه خسمه

ستا دلښے هر نعمت ته سلام

څو د ایشیا د عظمتونو زاسنکو!

ستا په نورتیا ستا په عظمت مې سلام

زړه دې تایم خوته ځانه ئې لا،
ته یو پنجره، ځما وزر ستړی

ستا نعمتونه د پردو د پاره
خپل ورته اوږی او نهر ستړی

ته هر ځای هر ځئې خوږه هیڅ نه یم
ځان وغورځمه، تو غورځمه ځمه

تا ته وروسته سلام کومه ځمه
ستا دلته هر نعمت ته سلام

اے د ایشیا د عظمتونو زانګو
دې تا لوړتیا دې تا عظمت ته سلام

ستا د سینې ړانړۀ خوازۀ رودونه
لا اوچ شونډې تروې نه شي
دوی لا بهیږي د چاغت د پاره
څونږۀ تندې سړوې نه شي
لا مو په برخه ترسکېدل پراته دي
چرته څوک م څوګمه څه
چرته هډوکي څوګوي څه
وطنه! ستا په هر عزت م سلام
ځم د ایشیا د عظمتونو زا سنګو
ستا په لوړتیا ستا په عظمت م سلام

دلته خبرې اپوته غوندې دي،
که سوزې سوزه لوګیدې به نه شي
دلته څه نوي قصابي جوړه ده
که مرې نو مره، خو خوزیږې به نه شي
ستا په برخه لا ژړل پراته دي
چرته څو اوښکې تویومه څه
چرته دا زړه بنه سپکومه څه
ستا په ناموس ستا په رحمت سلام
ځم د ایشیا د عظمتونو زانګو!
ستا په لوړتیا ستا په عظمت سلام

د بُت شکن د غیرت پاکے خاورے!
دلته خونی بُتان بیا وینمه
د ابدالی د ننګری غیرته!
ستا په ناموس د چا خندا وینمه
د ننګ په توره موږ ننګونه خیژو
چرته خوشحال رالیږومه څه
د سیالو سیال رالیږومه څه
ستا په اوده غونډے غیرت م سلام
اے د ایشیا د عظمتونو زانګو!
ستا په نورتیا ستا په عظمت م سلام

وینے چہ دا یو څو ملّی غاصبان
ځما او ستا په وینو اوپړسیدل
ګورے چہ دا یو څو اوږ ستړی کسان
دګوځ نغړ په غوښو اوڅړسیدل
تۀ ورته ګوره زۀ کتے نۀ شم

ځم اودۀ بخت بیداروم ځمه
ځم خپل قسمت راپاروم ځمه

ستا په بے وسه پروت ملت م سلام
ځم دایشیاد عظمتونو زانګو!
ستا په لوړتیا ستا په عظمت م سلام

ستا نعمتونه ستا آفاته پر پردم
زه په خوارو او مزدورو پسې ځم
د پلار درانه هڅوکي تا ته پر پردم
زه خپل هڅونه سُونو پسې ځم

د بل په تیغ نور ور تېرې نشمه
کانړي په نس پورې ترمه ځمه
تا ته ورو ستې سلام کومه ځمه

ستا د غیرو په غفلت م سلام
چه دننه ستا شي حکومت رابه شم
چه شي ازاد جمهوریت رابه شم

اے د ایشیا د عظمتونو زانګو!

ستا په نورتیا ستا په عظمت م سلام

اے د دُنیا د نعمتونو کو ره!

ستا په بنګلا ستا په عزت م سلام

○

دوه شعرونه

وایم چه ژاړمه خندا را شی

په خلقه دا سے وخت په چا راشی

اوس به نامه د رقیب نه اخلمه

هسے نه خولے ته م لیلا راشی

# دا څهٔ سړے؟

سمسورو ښانګو کښے چه څوک نه ځنګېدلی نه وی

دا څهٔ سړے دے

په ښرشی کښے چه پېغلوټی ګډېدلی نه وی

دا څهٔ سړے دے

د منو ول په ول اوربل چه په اوږو نه شی خور

چه سُوړګمے د تورو څڼړو په کښتو نه شی خور

په شنه چینه چه د منګو بڼا ختلی نه وی

دا څهٔ سړے دے

د ساک په پولو چه جینوتي تاو بدلی نه وي

د چا بنگړي چه په پټو کښې شنړېدلی نه وي

چه بابا کان ئے په خندا رالړزولی نه وي

داخه سپرلے دے

چه د شپونکی د زړه ټوکے لا چا لیدلے نه وي

د بین خوږو سندرو حال د زړه ونیلے نه وي

لا چه ټپو کښې نوی مینے اوربدلی نه وي

دا څه سپرلے دے

لا چه په غرد واورے یخه ټوټه پرته ده

نغمه په خوله کښے د شپیلۍ ترخو سره پرته ده

لا چه غانټول د غره لمنے غوړولی نه وی

دا څه سپرلے دے

نازکے خنزړے چه د سوی زړه ټوکی بادوی

نران بریتونه چه بے وسه اسویلی بادوی

د زړونو باغ چه لا وږے جهلیدلی نه وی

دا څه سپرلے دے

(پېښور جېل، مئ سنه ۱۹۵۳ء)

کہ پہ یو گټ کښې یوه ښانکه تو له ګُل شي نو څه

سپرے هغه چه هم په ګُل او هم په خار راشي

د یو غوټۍ نیمے خندا ته څوک سپرے نه وائي

سپرے هغه چه ناقلارو ته قرار راشي

په یو "پنجره" کښې یو "مرغۍ" په شوق ازغي بنګلول

دا به هم ګُل وي که صبا نوے بهار راشي

چه م ترسکیږي او چه شوندے ښاخکي ښاخکي پسے

څه په سپرلي که د جامونو په کرنګار راشي

د باغیچے د څو ګلونو په خندا څه راغله

چه هر طرف ته سوي زړونه په چغار راشي

ما اوربل دانه په خادرو پټه وښیل ئے

مونږ به هم او خاندو په مونږه به هم وار راشي

# فریاد

د لویو لویو قدرتونو ربه!
و تنا ده او ربے شئے که نه
ستا د سکڼو سکڼو ابنا نه وے
د چا د زړه لوے لیکے شئے که نه

---

ستا د سیلیو طوفانونو په مخ
یو اسویلے دے در لیږلے غواړم
ستا د چوچو سیندونو په نوم
لیمه را ډک شو خوشحال ئے غواړم

---

ھسے نه چرته د خوبے ویستل کفر شی
ھسے نه ستا تر ژړه بدل کفر شی

ستا د جنت د نعمتونو نه ځار
زهٔ درته اوږې په جهان ژاړم
ستا د دوزخ له لړمانو توبه
زهٔ درته دا "لړمانان" ژاړم

---

دلته د کبهے دوزخ تش کړو
هلته شو ستا د دوزخونو خشاک
دلته د دغه قصابانو خوراک
هلته د هغه بنامارانو خوراک

---

نه موځان تور کړو او نه سپین پاتے شو
نه د دنیا شو نه د دین پاتے شو

ستاد سنګینو فیصلو نه قربان
وے حیران یم کوم قانون او منم
ته خو د خپل قانون په مرکے منکر ے
زړه د په سر باندے قانون او منم

---

ستا په رضا خما رضا ده ربه!
کانړے هم نس پورے ترے شمه
خو چه بل بنا مړ په خزو اوویم
اخر انسان یم خپګه غلے شمه

---

راته یک شو زړه، ایسا روے ئے نه شم
خوله ماته بنه ده خو کنډهے ئے نه شم

ستا د جنت په طمع طمع چه مري
د هغه اوښو په سلګو م قسم
په دے دوزخ کښے ئے نور نه شم لیدے
ستا د رضوان په منارو م قسم

---

یا خو د زړګے په دے ارته سینه
ما ته خپل ژوند ځما جنت را کړه
یا د نهر دوزخي مرګ نه مخکښے
د یوے چغے اجازت را کړه

---

چه دا ستا اوږي ستا په خوان ماړه کړم
یا په خپل ځان باندے کارغان ماړه کړم

(زړه پښه صاحب تلقم)

# بړاس

دا نظم مرغۍ ته ویلې شوې دے، ځکه چې بړاس
نوم شو، مرغۍ دوه قسم وي یو حقیقي ـ بل مجازي
حقیقي د خاوند حقیقي په امر پاس اسمان کښې راڅي
او مجازي د مجازي خدایانو په حکم په کوزه مزکه ګرځي
حقیقي مرغۍ په ګلشن و صحرا، غر او بیدیا. ګل
او خار، غرض په ټوله مزکه یې شان میږي. او
مجازي مرغۍ په خاص خاص ځایونو ګرځېږي ـ چرته
یو رنګ چرته بل رنګ ـ

حقیقي مرغۍ د مزکې په مخ ټولو ته لا مرور شته
رحمت دي، مجازي مرغۍ صرف خپلو مجازي خدایانو
ته رحمت دي و نورو ته اکثر زحمت کیږي ـ دا
نظم د دویم قسم مرغۍ په نوم د دوي هغه مجازي
خدایانو ته خطاب دے ـ

ستا د "وریځو" په کور والی قسم
د چا د زړه بړاس هُم نه سرېږي
د دے "لوند" ایمان به هم اوکوړے
خو ستا د "وریځے" د لږ او وریږي

---

ته دا همه فضا "وریځ وریځ" کا
که اوسیلي وتا در رسیږي خو به
ته ګرځه او ګرځوه ورو ورو
لوغړن شوي دي لوګیږي خو به

ستا دا "خلقئ" او ستا دا دومره وریځ "
څوک وائي اسمان پرېوتے نه شے
وے دا خوله که م کږه شي داوره
د بل یو اه قدر زغملے نه شے

---

چه ما "بنک" او ځان خاوند گڼلي څوک
"ویښو!" زه او هغه بنه پوهېږو
ستاسو دا بز ساعت براس دے نور څه
دا اسمان شین کړي چه څه اوگڼړېږو

اے چه په تشو شپېلو اوګرځېدې

. وريځو!" اوغړېږې او وَرېږې

خو دا "خلائي" مو چه ترزانه ده تر

لږ له هغو اوځونو او ډېرېږې

---

چا وے کافر شوے دا دِ ښه ښه اووے

ما وے کافره! دېرم ښه ښه اووے

چه ځان ته "خلائے" ولې اسويلي نه مني

. بنګه" د داسے "خلائے" "خدائی" نه مني

# وخت شو

راغے سپرلے د غوړیدلو وخت شو
د لړزیدلو او لړزولو وخت شو
گل په زړه چاودی خوله، خندا کښے اووے
د پریشانو د سپکولو وخت شو
په میخانو کښے کاسے اوگرزیدے
بس د توبو د ماتولو وخت شو
د زلفو سورو ته خوبونه خوب شو،
اوس د مېړو اسا دولو وخت شو
د ہونتوب علاج منم چه نه شی
د خپل تندی د ماتولو وخت شو

ستاد اوربل د تروږمې ډِخېږ وی
ځما د زړګي د بلولو وخت شو

دا لا د مینې کوم مقام دی ربه؛
چه د ازغو د بنکولو وخت شو

د "لالا" داغ د "پرخې" ځل ته اووی
سنم چه ستا د ځایدلو وخت شو

د بل په مخ به دِ دا ځل لتوم
خوکه د "نمر" د کرسېدلو وخت شو

راشئ د خوبے نه مِ کاسے واړوئ
په ما د یار د بیادولو وخت شو

پیږه! زنګ شوی زمانے نوی کړه
د ښونو د مستېدلو وخت شو

(سول کوارټرز [illegible])

# احتجاج

اے زمانے ستا رنگینو تہ سلام

د ستا خوږو د ستا ترخو تہ سلام

بس دے ستا زړه کښے یو طوفان جوړوم

ځان تہ د خان غونډے جهان جوړوم

چہ د ورورولۍ او عدالت جهان وی

چہ بس د مینے محبت جهان وی

چہ تازه نور انسانیت وی پکښے

چہ هر خوا خوږ جمهوریت وی پکښے

اے زمانے د ستا تیرو تہ سلام

د بر دِ د سپین تهذیب په توره بلا

خما د تن هډوکي اوشپېلو،

په نرمو نرمو او پښتو خبرو

تا د بر خما زړګونه اوزبېخلو،

نوکا م تن کښې وینه پاتې نه ده

چه ته ئې اوښخښې سینه پلتې نه ده

ستا د چلبازو پښتو خولو ته سلام

اے زمانے ستا رنګینو ته سلام

ستا د فریب د رنګینه پېښتاره

تورو ماراڼو ډېر خوړلے یمه

د خوږے خولے سپینے جامے د لاندے

دغے ډاکوانو ډېر لوټلے یمه

اوس د ستوړي ماران ښه پېژنم

دا د مطلب اشنایان ښه پېژنم

خان ته د خپل مرض درمان جوړوم

خان ته د خان غونډے جهان جوړوم

چرته د هغه مداریانو په تار
مونږ د پښتو په شملے ارکنیدو

چرته د دغه ڇنډے مارو په لاس
مونږه د وکو غوښندے اوتښکېدو

مونږ ټول خوارځه د ښمنان اوپېژندل
مونږ زاړه نوي یاران اوپېژندل

ستا پخوانو او اوسنو ته سلام
اے زمانے ستارنګینو ته سلام

څوک د لندنه نازل شوے نبی

څوک د انګریز خلیفه شوے بابا

دغه دیو په تار خستلی کوډئ

هغه په بل پورے ترے کوډا

د بل سرنا ته کښیدونکی پرېږدم

د بل په مزی تاوېدونکی پرېږدم

ځان ته د خپل منزل کاروان جوړم

ځان ته د ځان غوندے جهان جوړوم

ځ ئ کوډئ کوډا مونث او مذکر

زمانے ستا اسلام مې هم اولیدو

دے خو په کلب کښے گډیږے هم شي

دغے ته شکله دین ایمان اووایم

چه په نوټونو خرڅیدے هم شي

ستا اسلام څه ډیر معصوم غونډے دے

منم چه نن صبا مظلوم غونډے دے

ستا نوی نوی نظریو ته سلام

اے زمانے ستا رنگینو ته سلام

چه د ځلمیانو نه ځلمۍ جوړوي

دغه تعلیم او تربیت مې اولیده

چه د شالونو نه شرمي جوړوي

د دې تهذیب دغه صنعت مې اولید

دا الوته تهذیب مې اوزمائیلو

دا بازاري طبیب مې اوزمائیلو

ځان ته نسخه د خپل لقمان جوړوم

ځان ته د ځان غوندې جهان جوړوم

۱ د ځلمی مؤنث (چې له پاره د تفهیم)

تهٔ د بوټو او ګېسونو خدائ

زهٔ د الله د رحمتونو بنده

تهٔ په ډنډو او کوټکونو مسته

زهٔ د احسان د اېتونو بنده

مونږ سره یو ځائې چلېدے نه شو

دوارهٔ یو کور کښې اوسېدے نه شو

بس دے ستا لویو او وړو ته سلام

اے زمانے ستا رنګینو ته سلام

زمانے تا کہ فرعونؑ را خستے ،

زۂ ورته بیا ید بیضا لستوم

د جادوگرو جادو ملک اونیوو

زۂ ورته بیا ہغه امسا لستوم

د شاه ظلمي وینے غورزنگ تېروم

په پښتنئ وینه کښے ننگ تېروم

په خپله خاوره خپل عزت جوړوم

خان ته جونګړه د غیرت جوړوم

اے زمانے د ستا تیرو ته سلام

# یو مرحله

یو اسویلے شو نوکیدے زړګے
هسه! مه ئے پوکه هور نه شي

د زړه دردونه ترازے ترازے
هُولو مه ئے چېړې خور نه شي

په پتنګ مه زېږئ شمع لر کړئ
لو غړن به دے سوے سکور نه شي

دا خپل متاک تندے اوس غړته نیسم
مات خو به شي کنه که نور ته شي

یا توبه ګار شه یا پرې ځان اوخوره
د دے لمبو سره کور نه شي

بس چرته وړکے د نیا ګټے پسے ځم
ګور خو به شي کنه که کور نه شي

# چرکتہ

اے د مېړے چرکہ پہ مابنام بانګونہ مہ وایہ

---

٢

ما دا نظم د دے ټپے اسېد نہ پس
لیکے دے

چرتہ انګریز چرتہ چترال دے،

بے ننګی زور شوہ انګریزان چترال تہ ځی

کہ څوک د دے نظم پہ خوند یا ترجیح پوهېدل
غواړی نو اول دې د دے پښتنی ټپے پہ نوعہ
خان پوهہ کړی۔

تا ته به سحر بنکاری خوپام کوړے مابنام نه شی

ته به ئے آغاز گډے خوپام کوړے انجام نه شی

ته به خپه مستی کوړے بے وخته راخوان کړے ئے

ته به چاپه بادو پر سوے روان کړے ئے

تل به د دنس وی خو هم دے د چرته سوړ نه کا

ژلوړه د حرص د ځوک نهر را باندے موړ نه کا

یا به د یو نعره فضا ته رسیدلی نه ئی

ستا بزره بزره به په هوا کښے الوتلی نه ئی

نوائے د مېړے چرګه!

په مابنام بانګونه مه وایه

دا منم چه تا سره خالګونه بنه دراشته دي

دا منم چه ستا دوه بنارو کان پاخه زاره شته دي

دا منم چه ستا اواز تر لرې رسېدې شي نن

دا منم چه ستا په قرقره به څوک غولېدې شي نن

یاد کړه دا خالګونه کورې ستا د اوتو نه دي

یاد کړه کورې ستا دا بنارو کان د جنګېدو نه دي

ستا دا لوئې اواز به کورې تا ته مصیبت وي بیا

ستا دا قرقرې به د هم تا ته لوئ افت وي بیا

نو اې د مېږې چرګه !

په نابنام بانګونه مه وایه

دا کوډې د ډېران نه دي ښانګونه د قول پرېږده

دا کوډې بلئ نه دي غزانګه سکول پرېږده

دلته به د رق سره په ټوکو کښې ټومبلې ئې

دلته به د تیغ سره په پنجو کښې پېرلې ئې

ه د چرګوټو غوبله نه دي چې په زور کړې ئې

ه چې د مالک چوټونه نه دي چې به سور کړې ئې

دلته د غوټې د شغ سره به بيا خېږې ئې

دلته د نظر د سیخ سره به بيا ټومبلې ئې

نو اے د مېړے چرګه!

په ماښام بانګونه مه وايه!

دا د چنړو بټ نه دے چه ته به ورغوټه شے پرې

دا د لالهټ نه دے چه ته به ورپڅه شے پرې

دا کیلهے نه دی چه په منګو خلاصېدے شی بیا

دا کومبړے نه دی چه په ګټ کښے پټېدے شی بیا

دلته په یو غرمب به د بړو سره تېر شوے ئے

دلته به د ځن سره د هر چا نه هېر شوے ئے

دا د پښه ورو کور دے دلته به یو کېږه شے

دا د ټوکه ورو ځائے دے دلته به یو ځېږه شے

نو اے د مېړے چرګه !

په مابنام بانګونه مه وایه

تا به کوړے واوره تش اواز قدر زده کړے وی

یا به دِ څو ورځو کښے دا ساز قدر زده کړے وی

دلته پنجه ور دی چه څیرلو ته ناست تږی دی

دلته نوکه ور دی بل خوړلو ته ناست اوږی دی

ستا به دا اواز لاړ د تالُو نه را بهر نه وی

تاؤ به دِ مرغت وی چرګوتیه ستا سُر نه وی

څهٔ تبسته دوه خپلے دوه پردی کړه خپلے ځایے ته

څهٔ بلا راوړے ئے د اوږی عقاب ځایے ته

نواے د مېړے چرګه!

په نابنام بانګونه مه وایه

بین مارتہ

راشہ ٹوک وھہ دا بین دِ
د دے غرد لوړہ سرہ
اے شپونکیہ د تور غرہ
اے بین مارہ د خبرہ

ستا د سوز و ساز پردو کښې — سرې لمبې دي راخورې کړه
ستا سوري سوري کوګل کښې — څو نغمې دي راخورې کړه
دا سره سره فضا د — په نغمو لمبه لمبه کړه
دا اوده اوده دنيا د — په دې بين نغمه نغمه کړه
په دې چه چپيائي کښې — غلبلې اودې پرتې دي
د دې ترو په خوټې کښې — زلزلې اودې پرتې دي
په دې بين د کوټې کښې — دغه غرونه په ګډا کړه
د خيبر د سر د پاسه — تندرونه په ګډا کړه
راشه پورته يو تيه کړه — له دې سوي سوي غږه
اې بين ماره د خيبره — اې شپېلونکيه د تور غره

راشه کوک وهه دا بين د

په دې بین کښې را تا واړو     یوه داسې کرمه توبه

چه اوده زړونه راویښ کړي     له دې ډېر غرقه خوبه

لېونې اتڼ شروع کړي     ورته ټکانړي بوټي جاړې

په ګډا شي په نڅا شي     غرونه غروڼه غاړې غاړې

د دې بین له سوې سازه     سره بخري رابهر شي

د مېړې وینې رګونه     دلته بیا په ګډا سر شي

د دې ترو د رغونه     بیا مستیانې راپیدا شي

د واډرینو سردرونه     بیا بجلیانې راپیدا شي

لړزنده شي په دې ساندو     هر خبر او بې خبره

اې شپونکیه د خیبره     اې بین ماره د تورغره

راشه پوک وهه دا بین د

د لالا د سوي داغ نه — اواز جوړ کړه په دې بین کښې
د زخمي زړګي نه څړیکې — رانجوړ کړه په دې بین کښې
د ژړګانو د سرو سترګو — خمار ورکړه دې اواز ته
د پتنګ سوي ګوځرې — یو پوکې کړه د غم ساز ته
د سحر د وړومبي څرې — پلوشې ورسره ملې کړه
د سپرلي د غوړېدونکي — باد وږمې ورسره ملې کړه
د شهید د کونډې اوښکې — ترموالې د هغې کړه
د خوشحال قبر له ورشه — باد د هغې ادېرې کړه
نن یو داسې نغمه جوړه — د بین مارو معتبره
اې شپونکیه د تور غره — اې بین ماره د خیبره

راشه پوک وهه دا بین دې

ستا دا لړزنده نغمې به — خوږ اوده وي په سورو کښې
ستا دا سوې سوې ساندې به — تر څو وي په پردو کښې
د درو نه به دې خېږي — د سپېږه ګوټکي بانګونه
په رغو به دې خورېږي — د بګوو اوازونه
د بازوګو سردرې به — دې په خراړو وي ودانې
د ګلونو دا کیارې به — دې په جاړو وي ودانې
ته به دلته کښې ګرځېږې — بین به هلته کښې درېږې
په خورو ورو کنډکو — به ښوان درنه مرېږي
ګورې شابه شابه — مړ دې واورېدو له سره
اې شپونکیه د تور غره — اې بین ماره د خېبره

راشه پوک وهه دا بین دې

د دې تورو سوو زړونو | شین ګوټکې پکښې نغمه کړه
کنۍ او د غیرت واخله | دا خبر پکښې لمبه کړه
بین ته داسې پوکې وکړه | یو کړه لوړې او ژوړې
په یو تار دې زړونه ګډ کړه | که نرمې وي او که لوړې
دغه شاړې شاړې کنډې | ټول خوږه خوږه نغمه کړه
دغه جاړې جاړې غرونه | یو پسته پسته وږمه کړه
د آواز سره دې تاو کړه | د تنکو ځلمو زړونه
د نغمو سره دې ګډ کړه | د ونځیزو قدمونه
پردې تورې تار په تار کړه | که څوک لرې وي او که بره
اې بین ماره د خبره | اې شپونکیه د خبره

راشه پوک وهه دا بین دې

(الاصلاح نومبر ۱۹۳۶ء)

# یو تپوس

څه اوکړم، ځان راته انسان ښکاریږي
د انسانانو نه پښتنه کوم،
اول د خوږے ماتېدو امن غواړم
بیا د غمونو نه پښتنه کوم
ځما جونګړۍ کښے چه دیوه بله شي
ستاسو په زړونو دا تیاره وے شي؟
چه زه د بار د لاندے ساه اخلم
د ستاسو وچ دلي تږاوه وے شي؟

کہ زۀ د بلدے ورځے هم خاندمه
تاسو په خپله کښے غرځن وے شئ؟
چه زۀ د ولوږے نه اپلاتے اولم
تاسو په ما باندے شکمن وے شئ؟

چه مونږ ه اوږی سره ناست اووینئ
مرو په تاسو زلزله وے شی
چه څونږ خولو کښے ژبے اوګرځیږی
ستاسو انګړ کښے غلبله وے شئ؟

اول د خوے ماتېدو امن غواړم
بیا د غټانو نه پښتنه کوم
څۀ اوکړم خان راته انسان ښکاریږی
د انسانانو نه پښتنه کوم

# کوجر

۲

ته د پیر طلاعمل، پیر مسید علی شاه، لالا
غلام سرور دوئی سره دیر ته لاړ وډم — د
دیر بنګل اباد محاته خاؤنده باندے مودرے
مسخه تجربے کړے، چه واپس راتلو، لاره
کښے یو مقام باندے یو کوجر مبنه خړولے۔
دغه کوجر یو مبنه لیبل مو او دا نظم
جوړ، وو —

مینے منمه د نواب صاحب دی

دے کښے خبره کول توان د چا دے

وے اے اے اے د انسانانو ربه!

دغه کوجر غریب انسان د چا دے

دے خوا ته سپینے خربدلی پرتے
دے خوا کوجر دے سپیلنے ولاړ
دے خوا مرے کبدے شونډۍ وهی
دے خوا نهر دے زیر زبیخلے ولاړ

---

دوی په یخ سوری غزبیلی پرتے
دے په غرمو دے کښیناستے ترِنه شی
جوی که سترې شی دمه ورکوی
دے که مری، مری سترے کیدے ترِنه شی

---

د دهٔ د خمار بدنه توله وینه

دے مینو اوچه کړه سحر و مابنام [۲]

د هغو دکه غُلُنزدک تیونه

د دهٔ په شُوندو تربو خاشکے حرام

---

دے تُوخ نعره په پنو پینے ابل کړی

کوټک په وَلی د خلوو د پاره

که مری نو هم د دوی د پاره به مری

او که ژوندے وی هم د ډود پاره

---

[۱] دو ۔ د "دوی" مخفف

خپل ماشومان ئے په ژړا پرېښي
د دوی کټی په څټ کښے سور کړوی
بچی ئے لوږے نه کوکه پراته دی
ګتو ته غېږه کښے اغوز کړوی

---

هغوی که هېنے دی نو هېښے خو دی
دے که انسان دے هم انسان نه شو
کوره هغوی د پاره دے هم شته دے
د دۀ قدر څۀ چه اخپلځان نه شو

---

مېښے منمه د نواب صاحب دی

دے کښے خبره کول توان د چا دے

وے اے اے د انسانانو ربه!

دغه کوجر غریب انسان د چا دے

---

د نواب مېښه د نوابه کرځي

د خدائی انسان د خدمتګاروی ورته

هغه پرسیږی د د ډکه په وازدو

دے د خدمت کښے خوار وزار دی ورته

---

انسان، انسان کړے ستا د شان اینه ده
د دوو دام نه قربانیږی دلته
که ستا خدائی ورته کښے شی ربه
انسانیت خو نه صبریږی دلته

---

ستا د خدائی نه په سل واره قربان
انسانیت خو صبریږے نه شی نور
دا چه ځما شرئی ئے اوشوله
د دوی شالونه ترینګیدے نه شی نور

---

ستا د خدایی د تقاضو په خاطر

انسانیت بانګے سوځند کومه

که دا "خدای" د اپیټه شی راته

زه د انسان په شانے ژوند کومه

(رحمت)

---

د هر خواږۀ خواږۀ م اوڅکل تراخه دی ،

پوهه پرېنه شوم څوک تراخه دی څوک خواږه دی

په اخر چه پوهېدلم نو دومره پوهه شوم

په دُنیا کښے "بنده" د هر دپا سره بنده دی

---

# عکس

د چا خونکارے خوبولی سترگے
لکه لبې وی د فتنو نه ډکے
هُم سوزوونکی هُم خوږونکی غوندے
لکه کاسے وی د لمبو نه ډکے
د چا خبرے په ترخو کښے خوږے
لکه ہانے وی د ګیلو نه ډکے

# جنت

د یو مُلا نه مې تپوس اوکړو

ما وې مُلا صیب جنت به څه وي؟

هغه په ګېږه لاس وهل وئیل ئې،

"تازه مېوې او د شودو روډُونه"

(۲)

خوا کښې کتاب ته یو طالب ناست وو

ما وې چه ته به پکښې څه اوولې؟

د زلیخې کتاب ئې بند غونډ ے کړو

وې چه، ښائسته حورې او شنهٔ خالونه"

(۳)

شیخ د تسبو امبیل په لاس ولاړ وو
په خپله بزیره کښے ئے لاس وهلو
دہ پرِ وا او دا نکل نه داسے نه دہ
بنکلی غِلمان او جنتی سرو ونه"

(۴)

یو خان په لویه سجده پروت پاخېدو
ما وے چه خان کا کاستاخهٔ راغے دہ؟
خپله شمله ئے سموه ونیل ئے:
"د سرو او سپینو عنبرِی کوڅو نه"

(۵)

خوا کښے یو ستړے سیلیلو ډلار وو

ما وے مزدوره! تهٔ جنت پېژنے؟

د خپل تندی خوله ئے اوچه کړله

وے چه "مرهٔ کبله خوارزهٔ خوبونه"

(۶)

یو لېونے غونډے په لار تېرېده

ما وے چه یه فلسفی! تهٔ څهٔ وائې

خپل بر سرے ګروو وتیل ئے،

"بس د انسان د خوشحالو خوبونه"

(۷)

ما دے خپل زړۀ ته سرور ښکته کړلو

دۀ په اوترو سترګو بره کتل

دے شوں اسمان ته غورېدۀ وئیلې

ما اوربدل ترِ دا يو څو لفظونه

وئيل ئې "اے د لامکان خاوندهٔ!

په خپل مکان کښے خپل اختيار جنت دے

کښي د دغه لپونتوب په نامه

که نار وي نار، که دار وي دار جنت دے"

(۱۰لامارچ ۱۹۳۳ء)

# یو بل سپرے

سپرلیه! وے م چه نوکے شوے درنه
ځما د پاکے وینے رنګ لړے ته
اوس وېم چه اور شوے یو نوکے م کړے ته
ځما په رنګ کښے د بل بنګ لړے ته

(۲)

سپرلیه! خدائیګو ځما هم ډیر خوښ ئے
وېم چه په وینو دِ سمسور کړمه
خوچه ته یو خندوے سل ژړوے
وېمه چه ځان د ته سور اور کړمه

(۳۱)

چه د یو ګل د خندا د پاره
ټول چمن اوښکه شي شبنم ژړوي
که د پېغور د مارغه رب ئے اورې
دا سے سپرلی خو دِ نور نه غوړوي

## یو شعر

څه د زړه په وینو سره غوټۍ ئے نه کړه ګل
دا ټول چمن که شین شي په خندا څه پرِ څه

# ملګرو!

ملګرو تش په ټوکېدو او نه شوه
ځئ چه لمبه شو دا خپل ځان اوسوزو
د نوي تېغ د ټوکېدو د پاره
دا زوړ خوړے ګلستان اوسوزو

---

دا چه هر کټ کښېنے بس نوړه بائي
د دے جونګړو نه به ژر ونه لوګے کړو
دا چه پکښې سل رنځورۍ اوسیږي
راځئ چه دا سېږه جلهنه توګے کړو

چه دے راځي مونږ ورته خوار پراته يو

ځئ چه د هغے مرګی تان ته ورشو

چه صبا بے کفنه مړه پراته يو

ځئ چه کفن په سر ميدان ته ورشو

## يو شعر

په دے ازغو به سروی، چړے ایښے ځما ګل

دا ځکه ئے د سوی زړه ټوټو کښے ځایوم

# اختره ..

اختره ته د بختورو ورځ ئے ،

څه، مونږ سپېره خوشحالوے نه شے

د ستا د خبرې مو توبه توبه ده

چه دغه سپی رانه شړے نه شے

---

څه، هغه خلق مبارک شه تا ته

چه ورکېدو او غټېدو ته پائی

دلته خو هغه انسانان پراته دی

چه دے تیرو کښے لوګېدو ته پائی

دلته خوارېږو سوالي پنجرے

تا ته ستونزې غورزوے نه شي

دلته بدبويه خوله شوي وينه

تا پهٔ شرابو لمبوے نه شي

---

ځهٔ ځهٔ ورځهٔ هغه بنګلو ته ورشه

چه د شرابو ډکے پیڼے لري

تهٔ د هغو خړو جنو زړے ئے

چه په لمنو کښے هم وينے لري

چه کوم تندی د لتو شوی دی نن
ورځه د هغو تکبل نه دی زده
چه کوم سرونو ته څوک سر نه دائی
څه څه، د هغو تیتېدل نه دی زده

---

ورځه ورځه غلو یارانو ته دِ
هغوی ته وخت اړول د پر بنه ورځی
چه د سرونو سره لوبې کوی،
نن ورته سر تیتول د پر بنه ورځی

چه ستا پاکی یوه پرده کړی خان ته
پکښې مستئ او ګناهونه کوی
ورځه ورځه، هغوی غټاګونو کړه
هغوی به تا ته سلامونه کوی

موږ غریبان خو مختوران یو، غله یو
پاکه نامه د اخستلی نه شو
چه څو د پاک او پلیت فرق او نه شی
په دے تیاره کښې پاکیدلی نه شو

تهٔ خفه کېږه مه ورځه مېلمنه

مونږه د هر څه نه وېزار ناست يو

مونږه ورتېرونه يو خوا ته کړځه

مونږه يو پېښې ته تيار ناست يو

---

ګورے د ستا په شانې سل اختره

دے "توره شپه" کښې سوزول غواړو

چه دا لېوان او انسانان جُدا کړي

دا سے رڼرا راخور ول غواړو

(رسول کوارټر پېښور ۱۹۷۲ء)

# رښتیا رښتیا

اے خرد خاوندو اوچو دکو واورئ

زمانه تاسو هیروے نه شي

په دغه رنګ کښے د ښکرو بوټین دے

خرے ایرے ئے پټوے نه شي

تخم په شنو ترو کښے اوتوکیږي

غیرت د باؤ ایساروے نه شي

دا د قدرت یو پخوانے قانون دے

فانوسان شمعے پټوے نه شي

چمن د نورهم په خندا خان شین کړي

د غوټۍ سره خوله پټوے نه شي

که هره ښنه پاڼه ازغی ازغی شي

ګل د خندا نه بندېدے نه شي

غزوندے ښخته ته اچوے شي منم

ولولے هیڅ زنځیر تړلے نه شي

خوله مِ دِ ماته کړی رښتیا پرِ وایم

پښتو پښتو ده ورکېدلے نه شي

خبر دے شخوندونه دِ پرِ دېر اووهي

دا زار موره[ل] خوک هضمولے نه شي

دلته یو ښځلے ورانېدو ما وئیل

چه وران ئے نه کړی جوړېدلے نه شي

وېم د دے لوئے کور انغزدِ جوړ شي

خبر دے که پاتے خما ښخلے نه شي

(د اتمانزو ته د تګ وخت کښے اکتوبر ۱۹۸۸ء)

ل زهر موره

# اُتمانزو ته

دا کال ۱۹۵۱ء دو، اُتمانزو کښې یوه مشاعره وه، زۀ ئې هم بللے وم، د دا سے وخت دو چه ښه خلق خوربه د اتمانزو خلقو هم د اتمانزو نامه چه څنګه پکار وه نه ده اخستے — ما هم ایله دا درے شعرونه وئیلے شول۔

اے اُتمانزو! راغلے یم خو درے

چرته سور ګل نه وو چه راوړے مې درے

سترګو کګو کښې دې ډېر اوژړل

خو شاخکے نه وو چه څوړلے مې درے

په زړۀ دلئ خیالات را اولړزیدل

خوږبه نه وه چه وئیلے مې درے

# خُلمي شاعرتيا

۲

یو نوی خُلمی شاعر واته خپل نوی تازه اشعار ولیدل
ما ته ښکښې د شاعرانه اعلیٰ صلاحیتونه سره د وخت
شعور، د ماحول او تنقیدی احساس او د تنقید جرأت
ښکاره شو .

ما په نزدچه د یو ملت خُلمی کښې یا خلوکښې د غه
صفتونه وي نو هغه نه مري، بلکه هغه مړ
تکا هغه راژوندے شي .

زه چه د ملک، تمام او اسلام د فرشتو د پاره ښه
خُلمی کښې دغه صفتونه د الهینوٹ غواړم . د دغه خُلمی
تعارف په دے نظم بیکو مجبور کړم .

دغه خُلمی پیر کوهر د مردان دی، د دے د جبه په وژم
دا نظم د ــــ چغه ټولو خلمی شاعرانو ته د ښکښښو
کوم چه دا صلاحیتونه لري یا لرل غواړي .

د خلې توب د ګرے وینے په نوم
د یو لواله زړه پیغام واخله
د شاعرۍ د ولولو په نوم دِ ،
د تلوسو نه ډک پیغام واخله

که زمانه شی یو پوټئ د ازغو
چه ته تګړے ے پرواه نشته
که اور کے شے پلوشے پیدا کړے
دغے تیرو کښے هډو ساه نشته

په سمندر کښې چپې د برے راشي
خو د ساحل په اسره خان تباه کړي
اوچه خان اوپېژني خان اوبنائي
د نوح طوفان شي يو جهان تباه کړي

---

که ته گوهر ئے بس د زړو په نرخ
ځه تار تار دانه جولئ واخله
که د غريب د زړګي نرشاخکے ئے
د انسان زړه درته جولئ واخله

څوک په سرونو باندے پښے کېږدي
څوک د فتنو په ډرزو خان نورووي
ځما او ستا په شانے ډېرک لېوني
ځان ډېرکوي خو توپل انسان نورووي

---

نېکان، نېکان، غټان، غټان پیدا دي
دوي خو د ځایه جنتیان پیدا دي
څوک هغه خوارو ته جنت او کېښو
کوم چه د موره دوزخیان پیدا دي

اے د ژوندیو ولولو ځلمیه !

راځه چه زړونه او لاسونه یو کړو

دغه د غیرو دیوال او نړوو

د خپلولیو دیوانو سره یو کړو

ځان ته د مینې یو ښه کور جوړ کړو

د تس نس شوو نه یو نور جوړ کړو

(اکوړه خټک)

# جواب

د جب سه ډېر خوږ سګرټ خط راغی. پکښې مينه ګڼې خبرې کړې
وې او اخر کښې ئې دا مصرعه ليکلې وه

د جارې بارزه م مينه ............ چرته د ما په ، استی خوله دکو وينه

د مګر زما خوږ دالی. ما چې کتلو او د مصرعې سره د ستر مينا ته ورسوم
او جلت ئې راته دا نظم راکړو.

خوږه، دردمنه! جېله منه اشنا!
زړه ته نږدې ډېره خوږه منه اشنا!
په خپله پاکه عقيده م قسم
ستا په وفا دکه ګيله م قسم
د زړه ډیوه کښې م د نور غوندې ئې
د عشق پیالې کښې م سرور غوندې ئې

که ته د تورو تیرو ګټ کښې پروت یې
زه د ډیوې غونډې بلېږم درته

ته د خوږو خوبونو غېږ کښې زانګې
زه سرې لمبې په زړه سوزېږم درته

ځما خود داره، وفاداره اشنا!
د ښونو د صف سرداره اشنا!

په خپله پاکه عقیده مې قسم
ستا په وفا ډکه کمیله مې قسم

اوس هم د زړه د رباب ترنګ مې لتا
د ښونتوب د زنځیر شرنګ مې لتا

د ننګ ډګر باندے ولاړه غازي

د مدّعا د سرے ډولۍ زبرے ئے

د زولنو شرنګ دِ وطن وینبوي

قبلګۍ د نوي ازادۍ زبرے ئے

د غریبۍ جولۍ کښے خانه اشنا!

په تور د میښے بندیوانه اشنا!

ستا د غیرت په سره لمبه مِ قسم

د خپل بابا په هډیره مِ قسم

قلم به مات کړم که غیرت نه لیکي

دفتر به اوسوزوم که پت نه لیکي

ے خوشحال خان خټک

مونږ لیوني که څوک په دار وسیروي

مونږ ته د یار د زلفو تار ښکاري ۲

مونږ ئې د ژوند د سپرلي نخښې ګڼړو

چا ته به ګل چا ته به خار ښکاري

د جلغانې د منځ ګلابه اشنا !

د پښتنو د تاریخ بابه اشنا !

د ستا په سره وینه تاوده یم قسم

په دننګه لوړه تهتره یم قسم

که پښتو هېره کړم پښتون به نه یم

چه لیلې هېره کړم مجنون به څه یم

## بے قراری

لکه تپه د یو ماشوم شپونکی د خوبے نه اوځي

په کانړو بوټو کښے خوریږي ځي فدکیږي چرته

لکه وږمه د خوشبو د که د ازغو په منځ کښے

په پاڼړو پاڼړو کښے کړیږي ځي خوریږي چرته

لکه یو پاکه پلوشه د سحرنی ستوری نه

په قورغن سحر را اوړیږي ځي تیتیږي چرته

یا لکه اوښکه په ښو کښے د نیمزالے کونډے

چه بے اسرے غونډ بنکاریږي ځي پټیږي چرته

ښځو دا سے م د زړه تاوونو واخستمه

لکه لوګے د اسویلونے تاوېدونکے یوړم

د اباسین د زور او شور چپو ته اورسیږم

چې تش ځګ وو او چرے ئے اسویلي پاتے وو

د اټک ور ته د خپل زور غیرت په داد ورغلم

خو مړے ایرے او خ . د نخښے میخکي پاتے وو

د کوهستان په متو ورو خاتو او کرځیدم

د ونو ځلے او د ختے خو بتکي پاتے وو

لاړم تور غر ته ما وے هلته خپل زړګی لټوم

غارونه شاړ و، پسے نوکے زمرکي پاتے وو

---

هڅو لو دا سے م د زړه تاوونو واخستمه

نکه نوکے د تنارو ئے غربدونکے لړم

د خوشحال خان د غېرتي وينې په څرېکه داغلم

تش څو څوندي او د شا دولو په ګډا واوړېدم

ما وې چه ځم د ايمل خان د تورې زنګ ختمه

او چه بارې کښې د سيلو په شغا واوړېدم

د دريا خان په انګرې کښې م بڅرې کتل

د رېښتيا نو په دروغ او په رېښتيا واوړېدم

د يوسفزو درنو درنو مېړو ته اورسېدم

د دزمن خوا کښې د نګرو په ژړا واوړېدم

د غلته نو زهم د زړګي تاوونو اوزپلم

نکه نو مکے د سوي زړه نے حسېلو کے پوړم

درنے درنے حجرے م ولیدے شاپرے پرتے

د مستو خان بنګله کښې سپیے دوزه ورتلے نه شو

په محلونو کښې تیاره وه بوټنه د مه ستړنه

د مولانا په خوا کښې صیب ونځتے لیدے نه شو

د لویو خلقو د سپین ږیرو خلکے پتے نه وے

د بنګله والو په تنګ لوټ کښې ځاځایے نه شو

په لویو لویو اغزو کښې کچه درب توکیدل

دو هوټونه دبر اوچت زه سپے نه شو

---

ملګرو! د غلت، د زړه تا دولو او ژړه م

د زړه لوګے په اوښکو ترئ زنګیدونکے یوم

ما وے دخپل بابا د دروند پتهکی تپوس کومه

یو د ټوپئ خاوند د لرے نه څوک اوخندولو

ما د خوږے ابئ د تور پړونی غم کولو

یو بے بکے راته پیر او استاد اوګڼلو

ما ارت تندی او لوئے شکرې او ډک کنډوالو

د چیتاکو په خاوندانو م ځان اوزپلو

زهٔ ګرځېدم د پښتنو په ورورولیو پسے

د زمانے په ګلانکانو م ځان اوخوړولو

هځولو! دغلته د زړه تاوونو پرے لمبو مه

ځکه د اوبزی اسویلے نے زهر پیدونکے یورم

د شهیدانو په درنو هډیرو اوګرځېدم

دیوې ئې مړې، جنډې کړې، ټګے خورے پاوے

د مړنو ستانو تر پاکو انغړو ودعلم

لاړی کاږنه، پوروښه ماټ، ایرے سرے پاوے

د قباګانو، عمامو ولونه مې اولستول،

دے د پاکی جامه کښے بس قشغر پاوے

په دوصال کښے مې سر بوس کړو بیا جانانه لاړم

دے سپینو سپینو محلاتو کښے تیرے پاوے

هوښو! د غفلته د زړه تاوونو پرے نبومه

ګله ئې وکے د مړ مشالن ئې نالیدونکے یوړم

ئې د کپو او لوښو ډلونډے مانډے قطاره وه

د پېغور باور او چتې جلې تشې پرتې
پکښې يو خوشې کوکو شتو تش اوازونه کول

تر اسمانکو او واورينو څوکو اورسېدم
هلته ورځو کښې .بجلېو سازشونه کول

د شنو رغو، پخو درو او تورو غرو لمنو
په تبرو پلونو پسې بيا بيا اوازونه کول

د غبرګونو هغه ځاے څو تيلي پاتے وو
چه تندرونو به ئے برش ته سلامونه کول

هئوئو ! د غلتم د زړه تاوونو پرے نښوړه
نکه اواز د مات منګي ئے ماتېدونکے يوړم

ما وې د شين اسمان ګنبت کښې چرته لاړ کوم

چه د دې وران ويجاړ مزل ئې تناوونه پرې کړم

ما وې په پل د کهکشان يو لېونئ منډه کړم

چه د برجونو ئې کاږه واږه تنګونه پرې کړم

ما وې که اوس م د چاغښت ملايان سور کانو کړي

خو بس ورځم چه د دې زور نظام رګونه پرې کړم

ما وې چه ځم که ځه خلائې تش د غمازند بوي

چه ورته پښو کښې د دې اوږو نه حلقو پرې کړم

چه يا په ځائې د سربتوب ځانته خپل کور جوړ کړم

يا د ظالم د ټوړې سورې لاندې کور جوړ کړم

خما د زخم علاجونه په مرهم مه کوئ

طبیبه مالګې دوړولٔ ته ګئې نور غم مه کوئ

د حسرت مرۍ تش د خوږې په بادونه رغیږي

عبث، د مکره تکلیفونه تهٔ د دم مه کوئ

دنیا ته شا کړه د غم خپل زړه کې دِ اولټوه

بس طوافونه نور د دیر او د حرم مه کوئ

چه خُماری سترګې بنکاره شي نو کاسې تشوه

اخر شراب دی شیخه داسې ترِ قسم مه کوئ

د مینې تاو به دِ رګونه د نغونه ډک کا

راشه مئین شته نور منت د زیر او بم مه کوئ

# خیبر ته

خیبر د کابل او پېښور منځ کې مشهوره
تاریخي دره ده. خیبر د غرونو ته هم
ویلی شي کوم کې چې دا دره تېره ده.
ما د دې نظم کې د خیبر په سترګه د غه
ټول غرنیز علاقې ته کتلي دي کوم چې
د ګلګت او چترال نه د بلوچستان تر وروستي
حده پورې ده. یعنې د بلوچستان کوهستاني
علاقه.

ستا په سربانډې خبره  یو جونګړه ځما کور وې
ته ځما په هر کښې وې  زه د ستا په انډوسورو وې
ستا لحظه تېرېږي  د فطرت په تماشو کښې،
توله ورځ د نمر په شېرو  شپه د ستورو پلوشو کښې
ستا سکڼړې مابنام رنګين شي  د شفق په لاله زار
سپين سحر د بادونو  په ورمږ شي نوبهار
په لمنه کښې د نخښې  د قدرت د رنګينو دي
په جونۍ کښې د تاجونه  زېړ مرېز د زمانو دي
د شېنکي پرده کښې پټه  د سرو وېنو آئينه ئې
په دې چپه چپيانې کښې  د تندونو نښانه ئې
که م تند يوه لحظه وې  خو چپېنو کښې د نکور وې
ستا په ترو کښې خبره  يو جونګړه ځما کور وې

د اسمان د پاکے لارے — دہ د ستا د پاسہ لارے

بُودئ اروی ستا ګُونہ — ستا د فخر د دستارہ

تل د دستور د دنیا نہ — نُور پہ تا باندے وریږی

د سپوږمئ پاکے شغلے د — پہ لمنہ کښے رانوېږی

تۀ دے شور تہ د ورځو — هسے ځان سرہ مستېږے

هلتہ برق شی پہ فضا کښے — دلتہ تۀ در او ځلېږے

سپرلی ډکے کړی ستا غېږے — د قدرت د ننداړو نہ

ژمی سپین پہ تا انبار کړی — د جنت د منارو نہ

اے پہ ما لہ هر څہ ګرانہ — لہ تا ځار م پلار و مور وے

ستا پہ ترو کښے خبرہ — یو جونګړہ ځما کور وے

تش د کاڼو غر خو نه ئے — ته غیرت او شجاعت ئے

د ننګ مېنځ قدرت وهلے — د پښتون په قومیت ئے

ستا د سوري لاندې اوسي — پښتانه لوئے لوئے خېلونه

ننګ د نر ښځو کالے دے — د دوی کسب دے جګونه

هغه تورې توریالي وي — چې فضا ته غاړه ووځي

په ژوندون به ئې شا نه کړي — چې مېدان ته یو ځل ووځي

دغه شین زمري ځاځن دي — په سینه دې وو بولي

خدایګو ته د دوی نیازبین — دوی د ستا دي نازولي

چې جوړ کړے دوی په مېنه — نن د ستا ننګ و تکور دے

ستا په ترو کښې خبره — یو جونګړه ځما کور وے

که کشمیر کښې راتوکیږي · بنه نازک نازک ګلونه

دلته ما کښې پیدا کیږي · د غیرت نه ډک مړونه

هلته حُسن و نزاکت دے · دلته ننګ او جرأتونه

که هغه جنت نشان دے · ستا نه ځار شه جنتونه

د پښتو د ناموس نخښې · چه تندې کښې ستا ځلیږي

تینګ په زړه او زر تختونه · له هیبته او لړزیږي

ستا په ګرد خړه فضا کښې · د بدبې دي د ښکرو

ښلنې دي د جمدو · ټلرې دي د خنجرو

په معنی کښې جام د جم ئے · ځما زړه کښې در ته زور وے

ستا په ترو کښې خبره · یو جونګړه ځما کور وے

کله هلته دِ په سرناست    کله دلته دِ په پښو کښې

کله ته ئې ځما نظر کښې    کله زړه دِ ستا بهو کښې

راسېړدې دِ رانه یو یو    د غلبېل ځیګر زخمونه

په پېړو چې دِ خوړلي    په سینه دي ګزارونه

چرته عشق دِ لګ شوی    په سینه ما راوکښلې

چرته بنځې بلې تا کښې    په ما رو رو راایستلې

چرته ژوبل په نېزې ئې    چرته شَل درکښې تومبې

خپل رګونه مِ تسمې کړې    ستا زخمونه مِ ګنډلې

ستا د خوږ ځیګر دلاسه    بل ځما په کوګل اور دې

ستا په ترو کښې خبره    یو جونګړه ځما کور دې

ستا په سترګو مِ کتلي — دغه لاړې د ميدان ته

د ماضي په آئينه کښې — د حملو هغه طوفان ته

د دې له ځانه څڅېده — د ميدان تر ځانه سره

سپین پکونه لوے لښتونې — د يو غړ نه تر بل غړه

کوزه تورے نه اوډرېږي — بره عشقي راوريږي

شور دے چغے دي نعرے دي — سېلاب ځي په وړاندې کيږي

زلکه څه په وينو سره شوه — چه فضا ئے اولسه له

د دے مرو له کبله — ميدان داوړبدو په بله

او بیا مِ درزد تورے — چه ستا خے په هر لور دے

ستا په ترو کښې خبره — يو جونګړه ځا کور دے

په تنده کښې د خلیبر بې　　د ماضي هغه نقشونه

چه اوریالو ستړو لو　　ستا په خوا کښې کنډونه

ستا په رنګ کښې داد داد یې　　د یونان د سورو پلونه

کوره دا پراته هغه وکي　　د محمود د فرخ هغه هونه

ائ دي ائ دي په درته　　د غوري د وینو دارے

راشه دا دي د خلجیانو　　نخښے پاتے دي په لارے

دا دي ملت پراته سرونه　　د مغلو د سورو دي

ابدالیانو د نیکلي　　خپل نومونه په درو دي

ته تاریخ م د عبرتے　　خو ځما د زړګي زور وے

ستا په ترو کښې خبره　　یو جوګړه ځما کور وے

د پښتو د عظمت کوره! ځلند ښکارې په دنیا کښې

د عروج ولولې ویښم ستا فضا کښې ستا هر کښې

د ژوندون احساس پیدا شو ستا د ترو په جونګي کښې

د شعور ناوې مستېږي ستا د غېږې په ډولۍ کښې

په خلو کښې تو کېدلی نوې وینه د سیالۍ ده

غز په سمه الوتلی یو وزمه د قام ډنګه ده

د ایشیا د زړګی سره پېرې شو خوشالېږې

د پښتو د غیرت ځله مبارک شه بس غوړېږې

ستا د غې ورځ په طمع کاش بخود ځې ژوندون بې نور دو

ستا په ترو کښې خبره یو جونګړه ځا کوروې

# د رحمان په هدیره

اے د مهمندو زمکے    اے د رحمان هدیرے

اے د ننګونو جاے    د غیرتونو د سپرے

اے د پښتو د وطن    د بدخشان مثاله

اے د خیبر جوئی کښې    د ارمغان مثاله

بدخشان ستا بدخشان    ارمغان ستا ارمغان

ته د ننګونو دیوه

ستوری د ستا پتنګان

اے خرے خاورے نہ ئے

بس تشے خاورے نہ ئے

اے گلو ودو وبنو دا نہ چہ تش وائے

د نورخیبر د تندی د غیرت تخال دلته دے

د پښتنو د قسمت صبانے فال دلته دے

یو د ډوے قلندر شاهجهانی تر قربان

یو د گهسندو ملنګ

شهنشاهی تر قربان

ستا په لمن کښې ومینم

د تېر کاروان پلونه

ستا په جولۍ کښې بنګړي د خپل سپرلي ګلونه

اے د ادب ائینے په تا کښې بخت وینم خپل

اے د شاعر جونګړے رنګ کښې د تخت وینم خپل

خیبر په دنګه عزمۍ تا کښې تصویر ګوري خپل

پښتانه غونډ دي په تا

تا کښې تقدیر ګوري خپل

زهٔ ستا د ننګ او پښتو

هغه منزل پېژنم

د خوشحال ایستی تورهٔ پت د ایمل پېژنم

ستا د غیرت په سینه د چا پل نه شم پرېښودې

زهٔ د پښتون بچې یم هیڅ مغل نه شم پرېښودې

د ننګ د تورې په مخ درته د ښرا راولم

دا تورې شپې خیر مه

تر سپین صبا راولم

ستا د مزار ډیوه کښے

دیو سپرلی زېړے دے

د دے شنو کانړو په کښے    د سُور غمی زېړے دے

ملګرو دا چپیائے ،    د نوی رنګ نخښه ده

دا د غیرت د طوفان    په هر اور رنګ نخښه ده

نړونه تک سور کړه وینو    نو غوړبدو ته ډیل دے

سپرے تیار ولاړ دے

خوشبو ته ډیل دے

# زړګته

که د چا زلفې بنامساران شي خوري دِ

زړګیه ستا دغه سزا ده چپ یه

که د بڼو په غشو ټول غلبیل شې

د دغه لارې تماشا ده چپ یه

---

که په غمزو شې ترازې ترانې

دلته دستور دے ته به چغړ نه کوے

که د چا سترګې خونکارۍ هم کوي

ته ګنهګارې ته به سټر نه کوے

که د بیلتون په زولنو کښې شې روست

د چا د مینې تقاضا ئې کښږه

که د خزان په خنډ و خار سوړ شې

د بهار زېرې په خندا ئې کښږه

---

درد دِ منه خو زخمونه پټ کا

اوس د زخمونو د نغړدلو وخت دے

که ژاړې ژاړه خو په زړه د ننه

د خلقو مخکښې د خندلو وخت دے

ستړے کړه پتې خان په زور او ده کړه
د وخت په نوي الاهو دوکه شه

زړکیه ستا زړه خو به ډېر څه غواړي
خو بس خما په تسلو دوکه شه

ویے ———— ځکه چې

هوی علاج د مینے صبر کېږي
خوک چه لوئے غرونه کنستلے نه شي

هوی صدا د حق ایستے کله شي
خوک چه په دار باندے زنګلے نه شي

○

څومره په زړه کښې ارمانونه لرم

یو ستا نظر ته ټول کارونه لرم

د اوښکو هر څاڅکے قطره ده د زړه

پکښې بے شمار حسرتونه لرم

له خوبه مې څه غواړے سرسرے کړے پوښتنه

پکښې رنګین رنګین سوالونه لرم

د چا د یو مُسکی نظر په طمع

تمنا ګانے دفترونه لرم

توښه د دین او د دنیا ختمه

په زخمي زړه سوي داغونه لرم

○

خمارو سترګو کړم برباد برباد

لکه نے کړم ځکه فریاد فریاد

د چا د یو نزئ خندا صدقه

ځکه تمام عمر ناښاد ناښاد

اوس د زړګی د بلبل خبر نشته

د اشنا هر نظر صیاد صیاد

کوره د عشق د لېونو نظر سته

د کانړو زړه کوی فرهاد فرهاد

د بیدردئ په غمخانه کښے شو روست

حمزه اجمل چه وو ازاد ازاد

په لمبو سوے د زړه کور بنه دے

چې بے له تا شو پکښے اور بنه دے

د چا د سپین ګلالی مخ په تورو

هر څه چې دی خو مخ م تور بنه دے

ستا د خندا ګل پکښے نه غوړیږی

د زړه چمن م سوے سکور بنه دے

بے نمه ستر کے په بلا ور واړوه

جام چې بے میوشی نسکور بنه دے

په ننګ ناموس پسے د ګرځی خلق

خټک ته ستا مینه پېغور بنه دے

هلته اینه کښې خپل بشر اوګوره
دلته سینه کښې غوټۍ ځیګر اوګوره
ائینه څه پېژنی ستا نازو نه
راشه ځما د زړه سپرهر اوګوره
څه دِ اشنا په خیال کښې هلته تر شو
دلته سینه کښې درزهر اوګوره
خپله د خیاله په هوا کښې ګرځې
په ما دِ غم لکه د غر اوګوره
لکه بادام سوری سوری دی زړه مِ
راشه نخرې دِ د نظر اوګوره

رندان مې خاورو نه پیالے جوړوي

د خمارو سترګو اثر او ګوره

واعظه! خبر دے بیا مې کړم اوګنړه

اول راځه حسن دلبر او ګوره

تل به ئے وے چه زړه د کانړو لرم

هغه اجمل دے په خپل در او ګوره

ما ته ثواب دے هر پے مخے عذاب

زړه بل ثواب د بل عذاب څه کړم

ناصحه! ستا نه به اول توبه کړم

خو دا زړګے خانه خراب څه کړم

یو ځل نه ظالمه تا څو څو ځله چیچلے یم

ستا د لاسه ترے ترے زړۂ دلته راغلے یم

ډیر دِ پاروے، کړوے، ستړ نوے یم

ستا د لاسه تن سورے سورے په زړۂ داغلے یم

خپل اولاد د لاسه دِ درے ته رسوے یم

زۀ خو دِ مکّاره څو څو واره کړوُے یم

ما هم ازمائیلے ئے او تا هم ازمائیلے یم

ما هم تۀ لیدلے ئے او تا هم زۀ لیدلے یم

اے د زمانے بارکه ځه په خپله لاره ځه

مه چیچه ما مه چیچه ځه ځه په قلاره ځه

پر برزده په دے تور غرکښے یو ارخ ته اوده بنده یم

پټ په خرو ترو اوچو بوټو او وابنه بنده یم

برق که کړي خندا راپورے خاندي دِ خندے شي

پرخه که ژړیږی راته ژاړي دِ ژړے شي

ګل که د لالا په وینو رنګ ځما پښنے کوي

یا زړکے، سیسئ، تنزري ما پورے غږے کوي

خوارے که رندیږي دلته سل ځله زړندیږي دِ

بنه کیږي، د هر بنه کیږي چه څه کیږي نو کیږي دِ

اے د زمانے باده ځه په خپله لاره ځه

مه چیړه ما مه چیړه ځه ځه په قلاره ځه

هی که ستا عادت وی دا او خواه مخواه چیړل غواړے

خواه مخواه زاړه هلوکی بیا را الس پرزول غواړے

نوے رباب په نوی شهبازونو ترنګول غواړے

بیا و بلبلستانو ته جامونه کړنګول غواړے

خواه مخواه زخمونه م په مالګه ډکول غواړے

دلته د نه خلاص نه شوم ما بیا جنګول غواړے

بنه ده خو بیا واوره ګورے مه کوه دا مه کوه

بنه درته معلوم یم په ځان پورے خندا مه کوه

اے د زمانے بادګه ځه په خپله لارګه ځه

مه چیړه ما مه چیړه ځه ځه په قلارګه ځه

زه کوره هم هغه د پښتونه ډک خوشحال یمه

زه کوره هم هغه د لبونه ډک خوشحال یمه

زه کوره دا واوره اول توره بیا قلم یمه

نوم مې دے خوشحال وے د ستا د پاره غم یمه

شرنګ ځما د توره به په غرونو لړزه راوسته

غږ به د غور زنګ مې په تختونو لړزه راوسته

توره مې د ننګ هغه د توټې نه کوزیږی نه

وینه د غیرت ځما چه کرمه شی سر یږی نه

اے د زمانے باڅه — څه په خپله لاړه ځه

مه پېژنه ما مه چېړه — څه څه په قلاره ځه

زه د لوئے بابا د کړے وینے تاوده څرکه یم

زه د غر په خوله کښے د محمود بت شکن کرکه یم

زه د هیبتناک خبر په سر د غیرت پرک یم

زه د پښتونخوا د طوفانی اسمان سور پرک یم

زه د لویو لویو د رو خونو ننګیالے ځوئے یم

زه د سربازانو بابا کانو توریالے ځوئے یم

داغ م د زړګی دے د عبرت د ولولونه ډک

هر یو حرکت م کورے دے د زلزلونه ډک

اے د زمانے بادګه ځه په خپله لاره ځه

مه چیږه ما مه چیږه ځه ځه په تلاره ځه

زړه کورے سیلاب د زمانے وته بند اچوم

ته خو لا ته ئے چه زړه په ستورو کمند اچوم

زړه په آب د توورے د قسمت توری وینځل غوارم

زړه په خپل جیلب کښے تقدیرونه کړول غوارم

دیرے ولولے لرم طوفان ترنه پیدا نه شی

لوئے ارادے دی بلجان ترنه پیدا نه شی

ماخو پښیمانی نه ده زړه ته به بیا پښیمان ئے

زړه خو خلاصے نه غوارمه دا ته به بیا ستومان ئے

نوا ے د زمانے باده ځه په خپله لاره ځه

مه چیړه ما مه چیړه ځه ځه په قلاره ځه

مړه مې کوړے مه کنړه اوده يمه بېداره به شم

خس مې کوړے مه کنړه د ستا د سترګو خار به شم

ستا انقلاب ګوتې زه تل وينم ماليدلی دی

تو نے نا کړدے دِ ما د ځان سره کاللی دی

مونږ چه دو مات کړي بتان بيا ما اودرولی دی

تا د بت شکنانو په غيرت پورے خندلی دی

زه تر بنه خبر يم د اوس سره ما څه اوکړل

خبر دے دا سے کېدېی بنه زړه يغ کړه د پرده اوکړل

اے د زمانے باڼه سا مِ لا راکښلی د ه

مه چيره ما مه چيره څه په خپله لا ړه څه

ما به هغه وخت درپسې قبر درشلوې وو

ستا دا انقلاب به مِ په تا درارولې وو

زۀ چه په مغل پسې د ننګ توره ایستلې شم

بل به کوم ګجاوی چه به زۀ ترِ ګوندِ غلې شم

زۀ خو بیا شهباز یم ښکارونو پسې ګرځمه

یاد کړه جنګیالے یمه جنګونو پسې ګرځمه

زۀ هغه خوشحال یم چه د خټک ننګ دا وغواړه

دا سے انقلاب خو زۀ تمام عمر په بخت غواړم

اے د زمانے باده ساه مِ لا راکښلی ده

مه چېړه ما مه چېړه ځه په خپله لاره ځه

کومے قلاګانے چه په وینو څونبز جوړے دی

کومے بنارئیے چه په هډوڅونبز جوړے دی

لوئے منارے چه د لوئی مو داستانونه دی

هغه مقبرے چه د عظمت موتاریخونه دی

هغه جماتونه چه څما د ایمان نخښے دی

هغه استانے چه هم څما د عرفان نخښے دی

سورے پرِ د غیرتِ د جنهے کله زغلے شم

کله د هُما جاله کښے زهٔ کوزکے لیدلے شم

اے د زمانے باده مه چیړه ما مه چیړه

څهٔ په خپله لاړو څهٔ څهٔ په تلاره څهٔ

ورشه د دکن او بنګالے نه دِ لړز او پوښته

ستا د ناز پکړئ د هما نه دِ لړز او پوښته

هم د پانی پت د مات تندی نه دِ لړز او پوښته

هم د سومنات او د دلی نه دِ لړز او پوښته

دا سیلاب په هیڅ خس وخاشاک ایسار به نه شی

تندر دے دا تندر په هیڅ شان په شاګرځید نه شی

داوړه چه اول به هم ستا غاړے ته پریوتے یم

بیا مِ خلقے خبر دے چه په کوم اړخ به اوتے یم

اوف اے د زمانے بادشاه — خه په خپله لار ځه

نه چیرته ما مه چیړه — ځه ځه په قلار ځه

دا سے د سوزونو نه ډک پک سازونه مه چیړه

دا سے د پیرو راسے را ډک زخمونه مه چیړه

دا سے په شورناکو طوفانونو غرض مه لره

دا سے په زمرو ډکو بنډونو غرض مه لره

دے د تورو ترو سرو بحرونه یوخوا ته ځه

لاس به ګوډے مرور ے ډنبرونه یوخوا ته ځه

دا د خیبر سترګے په بنګال ئے نظرونه دی

دے لئے لاندے ګوډے ډیر انقلابونه دی

اے د زمانے باګه ځه په خپله لارګه ځه

مه چیړه ما مه چیړه ځه ځه په قلارګه ځه

یه ځما ګوډۍ لوبه شي

یه ځما ګوډۍ لوبه شي

د خپل بابا په باغچه کښې په سیالۍ لوبه شي

ځما ګوډۍ لوبه شي

د مور جولۍ کښې په خندا او خوشحالۍ لوبه شي

ځما ګوډۍ لوبه شي

تهٔ د شاعرد سوی زړه یو ترانه ئے ګورے

یو ترانه ئے ګورے

تهٔ د خوشحال د انغزی یو پاغونډک ئے ګورے

یو پاغونډک ئے ګورے

تهٔ د یتیم ځلمی د نړی کور ډیوک ئے ګورے

یو ډیوک ئے ګورے

د دُر دانے غوندے پړه کښے د سپینئ لویه شے

په ځما ګوډئ لویه شے

د خپل بابا په باغیچه کښے په سیالئ لویه شے

په ځما ګوډئ لویه شے

د مور په غېږ کښې د قېدي پلار د غمونو کوډې

ته د غمونو کوډې

د نيا جونۍ کښې د نيازبين خوږ د يادونو کوډې

ته د يادونو کوډې

ته د وړے مجاز[1] د لوبو د کوډرونو کوډې

ته د کوډرونو کوډې

د غم په کال باندے پېدا په خوشحالئ لويه شے

خما کوډې لويه شے

د پلار د فکر د عصمت نوې کلۍ لويه شے

نوې کلۍ لويه شے

په خما کوډې لويه شے په خما کوډې لويه شے

[1] "مجاز" خما نيازبينه يتيمه خورځه چه په ما ډېره ګرانه ده۔

# زۀ هم ځلمے یم

زۀ هم شاعر یم د چا د ښکے سپینے غاړے سره
د نکین په تال خپل فکر زنګوُ ے شمه
زۀ هم فنکار یم د چا تورو خمارو سترګو کښے
د پېغلتوب شراب بے جام وکاسو څښلے شمه

---

زۀ هم د تورو ګورو زلفو عنبری سورو کښے
د نوی حسن په باغچه ځان ورګډے شمه
زۀ هم د ګرمو، پستو شونډو انګوری پیالو کښے
ځان ته د عشق آب حیات تیار وُلے شمه

---

زۀ هم ځلمے یم لیونے زړۀ م مستی غواړی
په مرمرینو ښکو خوب د چا سکنړی غواړی

زړه هم د غوښنے زړه نرم سینه کښے کانړه دے
رانه بنائست غواړی مستی غواړی خندل غواړی
د زلفو خوکو سره لوبے غواړی مینه غواړی
ملال بانړه خونړی سترګے مړه کتل غواړی

---

چه د ملګرے خندا د پېغلو انګو اورو یسنی
خما زړه هم ورته بے صبره ټپښیدل شروع کړی
چه د بڼو لاندے کاږه د خال کاږه اورو یسنی
خما کوګل کښے هم څپ پټ پټ ټنبیدل شروع کړی

---

خما زړه هم د مینے ډک دے مینتوب غواړی
تو ندون په خوا کښے د بے کچه پېغلتوب غواړی

خو

وے اشنا دا هر څه خیال او کنړه خوب او کنړه
خلقګو که دے ته یو لحظه اونکار هډ بے شمه
دا خو مستیٔ دی خوشحالیٔ دی او خدا هوس دے
والله که زه خو هغه ساه هم اخستلے شمه

---

څما د خیال په خلمی تړب ګونړي نکیاد خوږی ئے
قسم که زه خود نیکړي ژوند په خوند پوهـ نشومه
د حیات وینه م څربے څربے ژړے او څښی
قران کمزئ خو د دے زیست روزګار په بند پوهـ شومه

---

حسن به څهٔ کړم چه زړګے په خولو خوار لرم
مینه به څهٔ اوکړم چه ژوند په اوږو بار لرم

چې زم د مور د سر پړونې لا تار تار پروت وي
زۀ به د مستو وېښتو خوبونه څۀ اوو وینم
چې زم د خور سر لا سر تور وي د ظالم د لاسه
زۀ به د تورو پلوڅو خوبونه څۀ اوو وینم

---

چې رانه چار چاپېره تول ماحول سلګئ سلګئ وي
وایه د سرو شونډو خندا بانده به څۀ پوهه شمه
چې خپل کړے فصل تول راته ازغی ازغی کړی
د بل د ګلو به مُسکا بانده به څۀ پوهه شمه

---

له نظم۔

چه مِ نیازبین بچی د ولوږے مری زه کوم وړته
ملګرو! خندله به د مینے خرمستۍ اوکړمه
چڼکه ګټه بل خوری او ما د ولوږے وژنی
دا سے تصاب نظام کښے خندله خوشحالی اوکړمه

---

چه سرتوب پکښے تللے شی د زرو په تول
ملګرو! طمع ترِد لوړ انسانیت اوکړمه؟
چه پکښے حسن و محبت هم په نیلام خرخیږی
سرو! هغے بازار کښے عشق اوکړم لعنت اوکړمه؟

---

تاسو خو عشق وایئ د ژوندُ هم بیزار ناست یم
هرڅه چه کیږی یوے چغے ته تیار ناست یم

(۱۷۵)

ساقي چرته کاسه نيمه شراب لري که نه؟
په خوا کښې چرته چنګ ويا رباب لري که نه؟
ثواب د زاهدانو، ملايانو شه نصيب
رندانو ته رنګين عونډے عذاب لري که نه؟
سيعه! دا منه چه تهٔ مرې رغوے
دارو چرته د سوي زړهٔ کباب لري که نه؟
چه مستو ته مباح کاندے په ميو لمبيدل
اوس وايه ملاجانه چه کتاب لري که نه؟
راغلے يم دا خپله دنيا کښې لاهو کوم،
دے خم کښې څه قطرهٔ نيمه شراب لري که نه؟
د خم بے عزتي ده اوچے شونډے د اجمل
راواړوه ساقي څه مے ناب لري که نه؟

# یه پښتنو!

یه پښتنو! یه ځونو پښتنو!
یه تس نس شوو ټکرګنو پښتنو!

راځئ په ګور کښې مرکه شو سره
د سیالۍ وخت دے جرګه شو سره

دنیا بدلیږي ورته ځان بدل کړو
دغه د ظلم زور جهان بدل کړو

---

یه سرتور سر برښړ لغړ پښتونه
اوږیه، تږیه، خړ پړ پښتونه
ستا د خیرن سره تاجونه ځار شه
ستا د خولو څڅے عطرونه ځار شه

تهٔ پهٔ دُنیا کښې یو طاقت پیدا ئې
تُوره ئې، دین ئې او غیرت پیدا ئې

د سکندر نه تر فرنګه پورې
تر چنګېزیانو ستر اورنګه پورې

چا چه په دې خاوره قدم ایښې دې
تا ئې په خونه باندې غم ایښې دې

د اوچت سر دِ تېتېدل نه دي زده
دِ تا له مرګه تښتېدل نه دي زده

وې اې اې خما غریبه وروره
په ډېر نصیب کښې بدنصیبه وروره

سره د کلکو متو شل بنکارے نن

په خپل کاله کښے ىکه غل بنکارے نن

که په دنیا کښے خوار و زار دی مونږ یو

که د هر چا خنے بېکار دی مونږ یو

د پلار نیک، حق مو پردی خوری رانه

کیدے حق د امسزری خوری رانه

دا ډک د ګلو ګلستان وطن مو

دا په دنیا جنت نشان وطن مو

نن یو توته د جهنم دے راته

خوشحالی نه لږی تش غم دے راته

د میوو ډک دے او مونږ اوږي ګرځو
لوږي سیندونو کښے ئے تږي ګرځو

په خزانو ئے ښاماران پراته دي
چرته خانان چرته پیران پراته دي

د غلو ډک دے مونږ نهر ګرځو
خپل کور مو شته او در په در ګرځو

مونږ خدمتونه، بیګارونه کوو،
ورځ او شپه خان وډونو کارونه کوو

په کټه وته مو ناکان مارۀ کړه
کمه نے مو تشے دي کندوان مارۀ کړه

عثمان خونږ په وینو اوبهیږ سیل

خونږ په سر تر اسمان اورسیل

موږ غریبان پیاسه او نغن نه لرو

د ولوږے مرو وروستو کفن نه لرو

وروڼړو دا ځکه چه اوده پراته یو

اوده لا به وی موږ لا مړه پراته یو

راځئ چه ویښ شو اول ځان بدل کړو

بیا دا د ظلم زور جهان بدل کړو

نظام د مینے محبت جوړ کړو

کور د انسان د شرافت جوړ کړو

# انقلاب

## ( د سپرلي رانګ )

که تازه تازه ګلونه  که مسکۍ مسکۍ غوټۍ وې
که خه حسن و محبت وو  که مستي که رنګیني وې
که د ناز و محبت خبرې  مینه ناکې نندارې وې
که د سوز و ساز نغمې وې  که مدهوشه نظارې وې
که په لوړو او پېتو وو  ښکلي ولاړ ستلونه
که په سور کفن غمي وو  د لالا د زړه داغونه
که اسمان کښې بدغرا وو  د وریځو تندرونه
ورته سرد غوږ نیولی  وو خپل خیرې ګرولونه
تېرو ازغود و بخه  کې سه تمکې توکېدې
که سپېرې سیلۍ به راغلې  ګل به خان تنه ګروړې

که د سرو ګلو په تل کښې — به ورځې په ګلهېدو شوې
د ورېځو په ورځو به — خونې رنګې د بجلو شوې
د بېلتې هره څپېړه — یو پیغام د غورځېدو وو
د طوفان هره چپه کښې — یو اعلان د مسېدو وو
که په غرو وو که په سمه — سوزګلې وو سوزګلې وو
د بجلیو زارې شنې وې — پسرلې وو پسرلې وو

(توقعات)

زېږه وېنې چه څه اختر شو — اوس به خاندو خوشحالېږو
خلقو وې چه بند موسم شو — په خیال کور کښې به مړېږو
پېغلو وې چه اوس به کېږو — په اوربل کښې زېړ ګلونه
خلقو وې چه اوس به تاوېږو — د پتنګو نوی ولوله

# (رنګ کښے بنګ)

خو غزرو سکے د وریځو ‏ د تېرو په شان راخور شو

ګُل لا هغے خندان وو ‏ چې پېرحل ورته سوړ اور شو

بربوکښې په تاوېدو شوے ‏ تندرونه په ګړا شول

په ګکو د سترګو ورکښے ‏ د عبرت کاته پیدا شول

هم هغه شاګے زیلئی وے ‏ څه پرکے شوے څه جالونه

هم هغه پوے بلئی وے ‏ چرته بنګر چرته دامونه

ګل زېړے غوندے پرووت ‏ چرته ګټ کښے به اوچېږی

د غوټیو زړه له تاوه ‏ په څنډو دریا کیږی

اسوېلی اسوېلی کیږی ‏ چه سپېرے سیلئ الوزی

مرغی خان سره بوکنیږی ‏ چه د جارو نه را اوځی

وریځ راشي خو د بوتو    تنده لاسه یو په دوه شي
پرخه څه وي خدائی اوږشي    بوټي او سوزي سله شي
عجیبه شنندے را اوشوے    بس ویرانه ویرانۍ شوه
پرون څه وو دا نن څه دي    بس حیرانه حیرانۍ شوه
تنګ نظري دے پلے دي    مایوس شوي په هست دي
لوئے نظري امید واره    ننداروته د فطرت دي

## (د اُمید نړۍ)

دے د زیرو بم پردو کښے    پټ پټونے کړي ساز دے
په دے چپ غونډے ګنبد کښے    که پوهیږے یو اواز دے
دائمي اے د ذره خاوندہ    ښه دي ښکاري چه څه کیږي
دا دنیا دا ئے دستور دے    دلته هر حالات بدلیږي

دا ماحول چه حیرتناک دے  یو خوفناک منظر به راوړی
دا تورتم چه راخور شوے  یو تک سپین سحر به راوړی
د دے مړو خاورو لمن کښے  نوے ژوند راپیدا کیږی
په دے سوځی سیځی ځاګو  نوے خوند راپیدا کیږی
دا ازغی ازغی صحرا به  ټول نازک نازک ګلزار شی
دا سپیره سپیره خوا به  ټولی ودان و ودان شی
دا تیارے راخورے شوے  د سحر د علامو دی
د سیلئ دغه څپیړے  ښکلی زیری د ورځو دی

دا دنیا د انقلاب ده
انقلاب باندے ودانه
هر څه ستا د پاره کیږی
خو چه ته نه شے پښیمانه

۱ اکوبر ۔ ۱۹۵۰ء

# پېغله

ځلته د نمر رومبئ خيره راخته ښکاريږي

دلته له باغه پلوشه چه راوته ښکاريږي

هغه د شين اسمان د نمر يوه بېباکه شغله

دا د پښتو د پېغلتوب يو حيا ناکه شغله

هغې چه ټول جهان ته اوکتل خندا ئې اوکړه

دے چه يو زه په نظر راغلم هم حيا ئې اوکړه

خدائګو څما په ځائے که څوک وے زهر بدے به وے

که احساس ګل وے د غه ګل نه شرميدے به وے

پټه پروني کښې د حورو پېغلتوب وه جینۍ

لکه په خوب کښې د جنت د وربوځو وه جینۍ

دا نښتي څانګه د مستۍ نه زنګېده راته

لکه نشه د سرې پیالې نه بنګارېده راته

د زړګې تګ ئې د پېزوانګاز هېر کړې

لنډ قدمونو ئې د زیر او بم پردې هېرې کړې

د زړه درزا م دلته جلته ساه راښکلی شوله

چه دا م خوا کښې تېر یه نو ساه نیولی شوله

یو لمبه ده د نشو چه بس اورل کوی

یو هیول نشته، ده جادو حیرانول کوی

یوے ټوکرۍ کښے د رامبېل چامبېل ګلونه اوری

د بنګانو ستورو نه پاتے خیری زړونه اوری

ګلان ټوکرۍ کښے ئے پراته سر تازه بنکارېږی

د ګلو مېره معلومېږی څوک غنچے بنکارېږی

زړه په حلو نظر لېواله چې د چا ده جینۍ

څوک ده او څنګه ده؟ والله چه معما ده جینۍ

د ګلو باغ کښې ده سحر صبا، باغوانه به وي

ګلان ټوکرۍ کښې خرڅولو ته روانه به وي

له ګلو غوټو به چا خوږو ته امېلونه جوړ کړي

ملالې سترګې به ئې زړونو کښې داغونه جوړ کړي

لکه د زرکې چه ښايي د خوند رفتار کوي

ګله، چا ګلو ته ګلونه وړي ستوارا ئي

خو نه، له کلي په خنک تېره شوه باغوانه نه ده

چاغه ده ښارې ته ورځي په چا هرېانه نه ده

چالۍ څۀ بل غوندې شو نورۀ کړندۍ شوخوتۍ

په ښا ښا کورې څۀ شک مۀ غرسنۍ شوخوتۍ

د تک تالۍ ئې د بې وسه زړۀ دردزا بنائي

لبونے چالۍ د میئن د دیدن غلا بنائي

دا محبوبا دۀ چا میئن تۀ ځئ کلونه وړې

په غلچکو کتو کښې خوار تۀ تندرونه وړي

پرۍ لۀ ډېرے لېوالۍ نۀ سرګردانه بنکاري

لاړۀ ئې پرېښنوله قبرونو تۀ روانه بنکاري

جوړ منجوره ده بابا ته ئے کلونه راوړل

په ختی ورځ ئے خپلے ستړکے مشالونه راوړل

نه تنګی پېغله ځی بابا ته د بنه بخت دپاره

کلونه وړی د چا د میښے د منخت د پاره

په نرمو ګوتو به بابا بانډے کلونه کیدی

ورته پرانستی به نیمګړی ارمانونه کیدی

یو د میښے باډیوه ده چه خزو کښے ګرځی

بلکه د حورو خوب راغلے وی ژوندو کښے ګرځی

ځاغه ده اودریږه، راپرېوته، خوره وره شوه
ګلونه څنګښې ګل دلتې لاړه ذره ذره شوه
د یو خرکې قبر د پاسه ډېر دانه پرېوته
په اوده بخت دا د پېرونو خزانه پرېوته
رامبېل چامبېل خواره واره شو لرخه بر برابرا
په یو خزه مهین وښته ددې د سر برابرا
ښوایې پېغلې وو د نوی قبر خښتک نیوے
د مرګ بادے وو د ژوندون د نښو رنګ نیوے

ما وې چې چغې به کړي ژاړي به، تراخه به وائي
زړه په درزا شو چې خوله پرانزي نو څهٔ به وائي

پېغلې ګلونه په سينه قطاروَل تېر ته
په ډډ آوازنې دا څو ټکي اوړول تېر ته

"شهيده! خور دې په کونو سوري تهٔ نه قربان
چې پرې اسونه د ننګيالي ځغله سرنه قربان

خدايا سپړې کړې چې دا سرې وينې ګلونه شي بيا
د خوښو مېنو ټوټې سره نښانونه شي بيا

(پېښور سنه ۱۹۵۲ء)

# خپل منزل

د ګلو رنګونو کښې چه ژوند او سيږي نور او سيږي

ياد انګور غنچه کښې مينه او سرور او سيږي

بنګلي هيواد کښې د پښتون دغسې ژوند غوارم

مينه، بنائست او ورورولي د کې د خوند غوارم

دا م منزل، دا م جنت دے ور روان يم ورته

نه په ملايم، نه په خان يم، نه پوځان يم ورته

چه هر عذاب وي دغه لاره کښې لذت دے راته

که سرے لمبے شي دچا مينه کښې جنت دے راته

(۱)

د ادم خان د مستانه رباب خوږ سندرے
د درخانۍ د منګی ترنګ کښے تاوول غوارم
د بنګړو شرنګ چه د کودر مازیګر پر تو دوی
د تیراۍ تپے به سُر کښے اړول غوارم

(۲)

په تهتره د رنړو ستورو چراغانِ م ارمان
چه زر زری خندا چپے د اباسین راولی
د خیبر تورے ترے زیر او سره ګلونه حوارم
چه د مابنړ شپو نکے د مینے نه ډک بین راولی

له د پښتو نغوا قطبی نرختیز اړخ ته یو وړے خټکل دے۔

(۳)

د سوات د ښکلې نازنینې ناوې سرې لوئې ته

د مستې ګرمې چنارونه په ګډا غواړمه

چې د ګټزر رغو کښې حسن غزونې اوکړي

د هشتنغر ورشو کښې مینه په مسکا غواړمه

(۴)

د هندوکش د ابشارونو مستانه ترنم

د باګرام روح کښې نغمه کړمه کړې تږا تږاشي

چې خلا اوښکاري د سپین غر په واورینو څوکو

په مهتابي تندي د درست هیواد زړا زړاشي

لے کہ ۰۵۰۱

(۵)

په شنو باغونو مو د خپل سپرلي ورېږے ګډ شي

تازه مېوے مو په رګونو کښے سرور شي زغلي

په سختو ګټو کښے د ننګ زړے سمسور شي ګل شي

د غرة کلونه مو د ننګ وينه کښے نور شي زغلي

(۶)

چه د خوږو چينو روڼړ سورے مو په زړونو اوشي

د ترېکنو زهر ګبين د قدرودلو شي پکښے

پاکيزه باد د زرغونو درو راوالوزي پرے

د ازغو تېرے څوکے شونډے د غوټو شي پکښے

(۷)

بلې ډيوې شي د غيرت د ډګرونو وينه
تورو ځنونو کښې مو ورېنګې د شور پيدا کړي
د سحر خېرې شي د ننګ د پړ هرونو څرکې
ځينځنو زړونو کښې د نوي ژوندون نور پيدا کړي

(۸)

د غزنوي د توره آب د اسمان سور تندر شي
څو به د زړونو د سومنات نوي بتان ختم کړي
د افغاني[1] روح د سحر ستورے شي اځليږي
څو به د فکر د تيرو نام و نشان ختم کړي

[1] سيد جمال الدين افغاني

(۹)

چه د رحمان دومره د عشق مستئ نو ګرځي نولي

دا پښتو نخوا ئے د سرورڅک غزل غزل شي

چه د خوشحال پښتني ننګ نه سره بخړي خيبر ي

د بهرامانو خونے او سوزي اېسل اېسل شي

(۱۰)

هر زياتي خور ئے که مغل وي که څوک بلګر شي

د خپل محنت په ګټه وته مزدوران ماړه شي

د بهرني غاصب د ظلم لاس د منځه اوځي

په جنتي ميوو د خپل وطن خواران ماړه شي

چه خوږ سرود د پښتنو ورورولئ کړم شي

په غزا وسمه یو نوبت د قامولئ کړم شي

---

د روهستان نه د ښنا ست او خونه جنت جوړ شي

تس نس پښتون نه د الشباد زرقت جوړ شي

---

دا م منزل، دا م جنت دے، ور روان یم ورته

نه په مُلا یم، نه په خان یم، نه په ښځان یم ورته

که د غیرت دغه منزل ته رسیدے نه یم

ملګرو! واورئ پښتنے به زیږولے نه یم

سنه ۵۸
(پیچې ۱۵ مارچ)

له تا نه خم خو خم خو تلے چه نه شم
تندیه مات شے اودریدے چه نه شم
مرمه که نه کودم، که کودم سوزم
هم ورته کودم هم کتے چه نه شم
پوهه شوم په تش زړه به هیڅ نه کیږی
ورک شے قسمته صبریدے چه نه شم
سوزمه خه حسرت م لا سوزوی
سرته د شمع بلیدے چه نه شم
وا به خلم ستا د خته هره بلا
سیلئے یم خو ټوکیدے چه نه شم
هسے خو ییه د شوق کاتړو خټک
(خو ستا یو نظر ته اودریدے چه نه شم

# از ضیاءِ روحِ افغانی بترس

(دا نظم د یوم اقبال ۱۹۷۷ء په موقع د پښتور اسمبلی حال کښے ووستے شوے دے)

اقبال چه د فطرت د هنګامو سره اشنا دے
اقبال چه د وختونو د نبضونو نه اګاه دے
حکیم چه زمانے تلی په فکر او په خیال
دانا د ملتونو په عروج او په زوال
حکیم چه د انسان د نفس رازونه ئے تلی کښے
قومونه د قومونو تقدیرونه ئے تلی کښے
دانا چه د حیات د فلسفے په زیر او زور دے
د ژوند د تقاضو هرے پیچے نه خبر دے

اقبالؔ چه د جبریلؑ په وزرونو هوسیږی

د ستورو نه وراخوا جهانونو ته پسخیږی

اقبالؔ چه د الحاد تیرو ته زړے د ایمان دے

اقبالؔ چه په اصلی معنو کښے پلار د پاکستان دے

---

هغه په خپل رسا نظر حماؔ په نور کتلی

حماؔ روح کښے اخښلی سره بخرې ئے لیدلی

حمادؔ روح د ننه چه لمبے دی تر خبر دے

حمادؔ زړه د پاسه چه غمے دی تر خبر دے

حماؔ په اسویلو کښے د تاوونو نه آگاه دے

حماؔ خرو خولو کښے طوفانونو نه آگاه دے

شهباز چه ئے د سترګو د لمبو نه په شا زغلی

خُما په دے درو کښے داسے زړه ئے لیلی

خراج چه تل اخلی د پړانګانو د زمرو نه

میړے دی خُما چکے د دے ھیسے ښاهوسو نه

لیلٰئے دی هغه د غیرت نه چک مړونه

چه تل ئے اچولی دی په ستورو کمندونه

چه ګرد نه د مغل د سورونچ ساقی تل تان

قائل دے په غیرت خُما د هغه خوشحال خان

هندوان چه ویروی د چا د نوم نه ماشومان

قائله دے د هغه روهیلیانو په ایمان

تصویر ئے دے لیدلے د پښتو د ننگ اوبت
په نوم د محراب گل ترخبروی اوده ملّت
که زه د خیبر سوری کښے د مړو غوندے اوده یم
هغه والئ چه نه زه د تمامے ایشیا زړه یم
ځما په ابادئ د ایشیا تړے ابادی ده
ځما په بربادئ د ایشیا تړے بربادی ده
ځما بیداریدو ته اقبال خپله ترانه شی
ځما د ننگ بحری ئے پوکلی چه لمبه شی
ځما د روح په پاکو تلوسو بانده پوهیږی
دا ځکه خو ځما د الرزیدو ته هوسیږی

خما د قبيلو نفاق چه وينی نو خفه شی

دے زاری چه خما د وحدت سنګ پاره پاره شی

---

اول د دا سے نورا اقبال په روح باندے سلام دے

يو لځے خما نه، د پښتنو د پوره قام دے

بيا وايمه چه دے دانائي راز باندے جرګه شوے

د کا نږدِ په پنجره کښے د غه ګل سره ډيره شوے

دا خپل خيرے کړوان او ما تندے م ورته يوړے

چه دا ريزه ريزه د زړه غمے م ورته يوړے

دا خپل ژوبل احساس تتلے فکر م غنچه کړے

هغے د زړه خاوند ته م ترجمه يو تحفه کړے

په ما چه تل بلبلې دے لمبونه مِ خبر کړے

په ما چه دلته کیږدیا دے قیصونه مِ خبر کړے

خبر ئے په دردونو دے خپل سوی کوګل کړم

خما په غم شریک دے چه یو اور وریانګے بل کړم

چه جوړے ئے ګُنبد کښے د تاوونو غلغلے کړم

چه بیا ئے په رګونو کښے بر ځېره زلزلے کړم

چه اوشلوی لحد او کفن خیری کړی ګویا شی

پټ ستر کی زمانے ته په غُصه شی په وینا شی

خُما د رُوح د پاکو تقاضو نه ئے خبر کړی

د دے پردے د لاندے زلزلو نه ئے خبر کړی

○

لږ د خیال پردو کښې راشه — را تازه کړه زوړ یادونه

خمارې سترګې ښکاره کړه — بیا راغلي دي هوښونه

جنازې د اوښکو کوره — په اوږو د حسرتونو

په ژوندون مې دفنیږي — دا نیمګړي ارمانونه

شوم د شمعې غوندې اوښکه — څپله خپل سوي لمبه کښې

چې روښانه نه وو نه شو — د تور بخت تیاره وختونه

ستا نرۍ نرۍ خندا مې — ترانې ترانې زړه کړو

لکه ګل په خندا ښکاري — چې یې ګوري عالمونه

---

اے زاهده چپ شه چپ شه له توبو به دِ توبه کړی
د بړږو لاندے ګکو کښے د حیا اشارتونه

ساقی څه له عبث چیرے غرق په خیال دچادسترګو
چه ئے زړه کښے مېخانې هغوی څه کوی جامونه
څاسین د ترمو او بنکو نرمه نه کړه د بخت غټه
پرخه شا څکے په خندا کړی د غوټیو چسونه

چه ستا یاد ئے چرته چیری تر به سوی ساندے اوری
سوز د ساز دی ډک کړی د اجمل ختنک رګونه

# دَ پنجرے رنګ (مئی ـ آګست ۱۹۵۲ء)

دا یو څو قطعې ځما د هغه اشعارو نمونه ده،
کوم چه ما د یو تا نږده کښې هغه وخت لیکل
وو چه زه د مئی ۱۹۵۲ء ـ دغه په حراست کښې
نظربند وم. نه قلم وو، نه کاغذ، نه د لیکلو
اجازت وو، نه د لوستلو ـ د ورځو، تنده،
سړاګانو او عذابونو او ذهني او جسماني تعذیب
په حافظه هم کښې ډوه کړې وه ـ دغه شانې
ځما وفادارې شاعرۍ ته چه د دغه وخت
کښې هم ځما د زړه غوښې مړاوې کېده ته پرې نښو
او چه وخت به وخته به راباندې چه راغله
نو د غه دنیاوي دوزخ نه به ځې د شروع
هغه طبیعت دنیا ته ابوسعلم چه اوس هم ورپسې
کله ناکله ارمان کوم، افسوس چه که دغه به
ما ورکړلونه رانقل کړل نو چه د حافظه لمن م تار تار شوي وه او قلم او کاغذ سنګیه
. بد معاشو وه . زه دغه کلونه به چه څنګه ما رانقل کړه وو، د غه شان به مانه خوند ورکړه
قس نس. کښې وه شول او هغه به نه شول. شکر دے ځما خپل نیازبین خوږه بیان کل جان دا یو
څو قطعه اوبیه ده او شانې چه یاد دے نے هم ساتلے وے.

# الزام

اور بل دے یم په داسے ساده کالو

چه بازان اولی په چپ کښې د ګونګیانو

زهٔ وېم ور شوے د خانی جرمے م پرکړے

دوی وائی ته کړے اوبه خوردے زوزانو

○

بوزا وینه د "حیات" د غوټو څښله

ما د ګل زیړهٔ زبغلی وړخ ژړله

اے د سیل کونترهٔ! پوهیږې؟ هغه ښو

د بنګاری نزله په ما را پرېوتله

# ګناه

خدایه خوږه ژبه راکړې د وینا ده

د بیان اینه م صافه بې ریا ده

د ګوګنټ غوندې غونډان د غرور نه شم

یو بلبل یمه، بس دغه م ګناه ده

# پیغام

د چمن په خندا و خار کښې پسپسې دے

خلقه دِ خبر کړي یا خه شوي یا کیږي

هاغه مخامخ ګل او پوښتنې چه څه دي

په ازغو سوری سوری دے او مسیږي

# زړے

سحر راغله تر پنجرے م یو بلبله
په خندا م مات تندی ته چغبله
نمانځ یوے غوټۍ بلے ته اووے
گوره! زړے د گل اخلی یو له بله

# غصه

چرته لوګه، چرته لت، چرته پرکه شو
چمن نه شو د ښکاریانو یو اډه شو
د ګلاب په څانګه ناست بلبل کوکے شو
هره ساه م په پنجره کښے سره لمبه شو

## خبردارے

هر طرف ته خاموشي چپه چپيا ده

د اوبو مخ چپ ولاړ لکه ميدان دے

يو هوښيار ماتړکے په چغه وائي زر کړئ

سمندر ده ساه راکښلې جوړ طوفان دے

## نوے ژوند

وخت بے وخته يو ورځمه چرته نه راشي

تر پيدا تما په مات وزر کښے ساشي

معلوميږي چه تما بڼړے الوزي

تر نه مخکښے به يو نوے ژوند پيدا شي

خوږه پنجره

د چمن نه شين ټوکے په بره ګېرېږي

د ګُلونو اوسېلې را معلومېږي

اے پنجرے ستا د يخ سورې بلا واخلم

دلته بُوټئ د پسرلي را محسوسېږي

○

تور سېخونه، تياره کټ، تنګه پنجره ده

هره ورځ په ما د ظلم توره شپه ده

د ګل عشقه! ته به پوهه شے چه دا وے؟

ما ته اوس هم د هغې چمن نه ښه ده

## کامله عقیده

دے جوش شوے د مستو ستر کو رنگ دے
د نمرود اور دے خو مینے تہ گلزار نگ دے
اے صیاده! یہ کامله عقیده م
زولنو کښے د بلبلے د بنګړو شرنګ دے

## خوازه خوږ

د شیپلئ د سوو ساندو خوند له څه دے!
د سورى سوری کوګل او جاودى زړه دے
هره نساه چه م نغمه د بیبلدی شوه
زړه چه څو مره ازغی خوږ کړی همرنبه دے

## بے نیازی

پوھ شوم، پوھ شوم عقل خام کړے صیاده

د کاغذ ګلونه څه راوړے پنجرو ته؟

په خزان کښے د سپرلی مزے اخلو

مونږ د ګل مینه کښے اسپارا غوته

## جرأت

زړے اے د سپرلی باده! په ما زړے

په تُہمت ئے د ستا زړهٔ په زولنو کړم

که مِ وینه کښے د ګل د مینے بوټی وو

د جال غوټے به ئے سترګے د غوټو کړم

# رنګ رنګ ګلونه

○

په زمانه یو څو غټان قابض دي
خدایا په تا رانه ګلیان قابض دي
غریب ته سترږد خوږے ویستل کُفردے
په خدایئ غټ غټ انسانان قابض دي

○

اے د بندیانو د احساس خالقه!
څوک وئ چه اوس هُم لاسرے پیدا کو؟
چه دا نیازبین غټان پرے وبے کوي
ورته د غوښے ګوډاګی پیدا کو

ے مصنف د پېدا کړه

زه ګنهګار صحی چه سپینے وایم

هغه نامسلمد دے که تورے کوی

وے که ستا نامه تر منځه نه وی

ګودم چه دے به خنکه نور کوی

## زور او تته

څما دا خوله د ماتیږده منم

یو نه که سل ځله ماتیږی واوره

د غریب خوله خو هسے هم ماته وی

خو ستا کاسه هم نسکوریږی واوره

ے الله

# انسان

که قاضي شې که مُلا شې که غټ خان شې

زوره هیڅ نه ئې که هر څه د خپل ځان شې

که ځمامنې نو هر څه هر څهٔ شته ئې

خو هر څه نه اول که ته انسان شې

# خپل عمل

کتابونه مې پسې ګڼه اولوستهٔ

حکیمان مې د ملکونو اوپوښتهٔ

د دې هر څه نه بس دغه قدر پوهه شوم

خپل عمل دې که خوازهٔ دي که تراخهٔ

# اقرار

که مُلا وائي لعنتي لعنتي

که شیخ مې بولي تُهمتي تُهمتي

د ستا د مینې هر منزل کښې اشنا

ځان راته ښکاري جنّتي جنّتي

## بندش

په دواړو سترګو به مجنون نه اُودهٔ[1]

په خوله به هُم خبر دے مُړونه اُووَهٔ

چه د غلے په خمبو ته کښېناستے

لوږے ته ښکه د ښوا لوُنه اُووَهٔ

[1] د اُودهُو مخفف

ځان مې په در کښې کړو در ته خاورے
په خټ خټ خاندے ژړا م ناورے
یو ورځ به غږ شي چه، خټک ومړو
که ناورے ناورے هم په دا واورے

## د زړه غوټۍ ته

اے ځما د اننړی سوړه ټوټیه
خدائے د پاره ته م مه راځه بغیر ته
دا د زړه غوټۍ م مړاوے چرته نه شي
دیرے پیښے لا پرتے دي مخکښے د ته

## ساقي ته

ای د مستو او کاسو خاونده!
ستا د ترخو اوبو بلا واخلم
پکښې سا مې اخله بې واره راکړه
بیا مې خړوب کړه چې لږ سا واخلم

## فیصله

نه په ثواب نه په ګناه یم بس
نه په ژړا نه په خندا یم بس
اول خو ستا په مخکښې هیڅ نه یمه
او که څه یمه نو د ستا یم بس

## خوار

یو وئیل فلانکے قلبہ نہ لری خوار دے

بل وئیل دینګلے کوتہ نہ لری خوار دے

ما وئیل خدائے مو خوار مہ کہ داسے نہ دہ

چہ د ښہ خصلت ترینہ نہ لری خوار دے

## "د لمبو اوبہ"

پہ دے ازغو بہ سروی چرے ایښے خاګل

داځکہ ئے د سوی زړہ ټوټو کښے ځاګوم

ساقی! د چا د مینے یاد پرِ لا لمبہ کوم

داځکہ د لمبو اوبہ لہ حلقہ کوزوم

# دُعا

څو به غواړمه چه دا راکړه یا دا را

زۀ هیڅ نه غواړمه یو ښکلے اشنا را

چه د یار د یو خندا نه ئے قربان کړم

پاکه خدایا! دا ټول گنجه دُنیا را

# چغے

هرخوا ته چغے دی انسان جوړوو

یو وائی "زمکه" بل "اسمان" جوړوو

راځئ چه اوکړو ترې تپوس پښتنو!

مونږ انسانان یو که نه "ځان" جوړوو

# د غرهٔ چینه

د لوړو لوړو غرونو — په خوړه وړه جوۍ کښې

د دنګو دنګو څوکو — یو ژوره خړخوړې کښې

د تورو تورو تړو — په ویجاړه غونډے خوا کښې

د غلی غلی باد سره — پسته پسته څپا کښې

د ګورو ګورو اونو — د یخ یخ سوری لاندے

په شنو نرو نرو — صافو سوترو شګو باندے

اوچت اوچت سرونو — کوږه کوږه پېنو کښې

په ګنړو ګنړو جاړو — په دلو دلو ونو کښې

پیدا یم، داسے پایم، په ژړا یم، په خندا یم

خاوندهٔ د فطرت! کیلے په سریه خله ثنا یم

یو غرقې غرقې کندې جارې جارې ئې لمنې
بل ورانې ورانې ډبې تورې غنې غنې

یو بره شین کو شین د ګرد شوو نه اسمان
بل بنکته تر نظره غرونه غرونه م جهان

یا چې چپیائ نکه اوده توله فضا وی
نرئ نرئ وزمې د هوا بوتو کښې تکیا وی

یا ځائې په ځائې قدم په قدم رنګ په رنګ سازونه
په بوټو، ترو، څوکو د غرسوو اوازونه

دے لوړے، دے ژورے، جارو، شارو کښې پیدا یم
دے خوا او شا الا بلا ته کوم نو پایم

سپلونه قسم قسم　　د مرغانو راته راشي

خوږے خوږے سندرے　　راته جوړه مشغولا شي

رنړو رنړو اوبو ته　　م جامو کښے نه ځايږي

ښځبني، لوبے کوي　　لامبي پکښے خاندي خوشحاليږي

يو هلته په مستئ مستئ　　کښے ځان سره ګډيږي

بل دلته د يو بل سره　　د مينے نه جنګيږي

په پنجو، په مښوکو　　جوړوي خپل سنګارونه

يو والوزي لس راشي　　راته جوړوي مجلسونه

که نه يم د هيچا نه يم چه يمه د هر چا يم

باران، نه په سيلئ نه نه تيارۀ نه پيدا نړايم

د غره د مستو مستو ورانو ورانو ځناورو
ټولې ټولې راغې د زورورو زورورو

ښاربه ښاربه مزرې چه هسې ځان سره غرمبېږي
لیوان غرڅه غرڅه شپېږ په غوښو نه مړیږي

هوسئ په ډاګو ډاګو وړوستو وروستو کیانړ ګورې
راغې په منډو منډو تږې تږې په دا لورې

دا اخوا دېخوا لړے او نږدے چه څه پیدا دي
وارۀ دي او که لوئے ځناور ټول ځما اشنا دي

زیاتېږم چه کمېږم، نه اوچېږمه همدا یم
قطرے قطرے نه لپه لپه شمه، پوره بایم

د غر د تېزو پلوشو سره په لاره
يو رنګا رنګ تال اچوي بودۍ خمار د پاره
دا ستوري راختو او ځلېدو او پرېوتو کښې
سپوږمۍ په غبرګېدو پوره کېدو او نېدو کښې
او به م پا کې پاکې کړي اینه ګوري مخونه
یو بل بانده شغلو شغلو کښې بر کنډي ځانونه
تیار رڼا کښې چه د اور اور کي پرک ما کښې پیدا شي
حیرانه حیرانی خوره د ستورو په دنیا شي
یه غرّه! ته به ما بنکلے که زه بنکلی په تام
قربان دې ستا د خرو خرو روزو په سودا یم

ځما بله دُنیا او د دُنیا بله دُنیا ده

ستا خپله، ځما خپله، د هر چا خپله دُنیا ده

د ګُل او د بلبل او د مجنون او د سیلا نه

د ناز و نزاکت او د خندا او د ژړا نه

د حُسن د دوکو او د ترو سترګو د نشو نه

د ترمو ترمو او بنکو، یخو یخو اسویلو نه

یو ارخ ته د غر په خوشی بنز کښې مِ ګُذران دے

هر چا ته مځکښې اینبې مِ خپل ځان په دسترخوان دے

هُم دغه مِ عمل دے څکه ځان د شاګدا یم

ورنه غزندے په دغه صفت لوبه ترهر چا یم

ساده ساده عالم راته خوله وائی د غرونو ،
هوښيار هوښيار لا وائی چه زهٔ مور يم د سيندونو
چه ترې تکې سپينې اوبهٔ ويښی عاشقان
هغوی وائی چه ژاړی غر په غم کښې د جانان
څوک ماګڼړی نظر کښې پخپله نور د بارانونو
څوک وائی راته وينهٔ د دے زمکے د رګونو
شاعرم تخيّل کښې په ستائلو نه مړيږی
عالم م په تحقيق کښې حقيقت ته حيرانيږی
نن خوا له خټک راغے راته ئے اووے چه چينه ئے
والله چه د قدرت د رنګينو ائينه ئے

(زلمے ۲۲ مارچ ۱۹۴۶ء)

# ځما

○

په خندا راغلے په ژړا دې پرېښودم

بنده شوے د خلقو د خندا دې پرېښودم

جام دې په شونډو پورې مات کړو ځما

سوے، اوتوے، بے نوا دې پرېښودم

اے د چا خوږے غونډے تېږه یادې

داغلے زړګے کباب لاړ دې پرېښودم

www.urdukutabkhanapk.blogspot.com



## دا لیډري؟

که د زور وي که د ظلم، بنګله بنګلې جوړوي شي

که حرام وي که حلال وي، نو دولت جمع کوي شي

که د بنده ګاډي[1] خاوندئ، خلق ځان ته زیروي شي

که جلسه وي که جلوس وي، موټرونه زغلوي شي

د نوټونو په شغارې، د چا خوله اوبه کوي شي

د ډبلو په ګرزنګاري، که څو تنه چلوي شي

که صاحب[2] وي که لیډر وي، تې پارټیانې خوروي شي

که د غم وي که بنادي وي، خو محفل پرې جوړوي شي

که یو څو د فتوو توپې، په حلوا راضي کوي شي

د مذهب ټهکېداران هم، خبرا تولو ته غوښتي شي

[1] موټر [2] افسر، وزیر

که یو څو دننه ماران هم، په کرایه څان ته نیوے شے

که بدمعاش که جوارګر دی څو حجره پرے ګرموے شے

ضرورت بے ضرورته څان جلسو ته رسوے شے

چه موقع د نمائش وی، چنده د پره ورکوے شے

څو د بیعے ورکړان هم، په جلب کښے ګرځوے شے

که نعرو ته، څان د پاره، څو تندزی مروے شے

که په چل که په فریب وی، صدارت پکه کوے شے

او که نه وی چه جلسه کښے، خود صدر خوانوے شے

که په زور وی که په زرو، څو ملګری خپلوے شے

د یوے پارټی دننه څان ته د له بیلوے شے

که د پریس رپورټران هم، په خه چل ول تیر یستے شے
چرته بنه مُنشی دِهم وی، چه بیان پرِ جوړوے شے
که هر ځائے کښے د ر بنمو، بنه سوټونه دِ لباس وی
خو جلسے جلوس د پاره، خامتا خرڅ اغوستے شے
که ژوره ئے پرسیږے، د غریب په ویښ زوو
خو د خولے په لام لباس دِ، غریبانو خوشحالوے شے
بے د کلب او د بنګلے نه که بهر وتلے نه ئے
خو چه وخت د انتخاب شی په دَرونو ګرځیدے شے
که دا هیڅ درسره نه وی، خفه مه شے لالا ګُله
خو په زور وی که په زرو چه ووټونه اخستے شے

که دِ ستړي کړي په بڼه لويه ژبه د کرکټ کړي
وا وا دا مزه لا بله، ستړي کو رپ کښي بدلیږي شي
نو که تش د غوبنو لوت ئې، یا بې مغزه سرکدو ئې
پرواه مه کوه غازي ئې، چه څه غواړې اخستې شي
دا د کډو بزو وطن دې، دلته پوهه تميز نشته
که قصاب ئې که شپونکي ئې په کوتک ئې غوندې شي
مشري دِ مبارک شه! هم وزير ئې هم رهنما ئې
د ملّت عظیم" لیډر ئې، هم کاکا ئې هم بابا ئې

چه نشه د استبداد لری په سر کښې
ما ته یو دے که مغل دے که افغان
چه څما د کور ازغی ته کاږه کوری
وبه اور شے د هغه په ګلستان

○

چاوے چہ څۀ اَلا بلا دِ او وے

ما وے چہ بنۀ صفا صفا مِ او وے

چہ څۀ دِ زړۀ غواړی او او نہ وائے

هسے تش لوت پہ دُنیا څۀ لہ پائے؟

(فدبیا کہ خبری)